چهارشنبه ۱۳۶٤ کال
دثور ٤
April 24, 1985
پنځم کال ۱۹۸ گڼه
پرله پسې گڼه ۱۱۱۱
دتاسیس کال ۱۳۵۹




# دثور دانقلاب حقیقت


د افغانستان د خلك ديموكراتيك گوند د مركزي كميټې ارگان







# دنوميالــــى هيواد په نــــامه

## دستري ملي او تاريخي لويي جرگي پرانيستل



د لوی خدای په نامـــــه، زموږد نوميالی آزاد، خپلواك او واحدهيوادسرلوړی افغانستان په نامه او د افغا نستـــان د اتلو او زيار كښنو خلكو پـــه نامه د افغا نستان د پتمنـــو خلكو ستره ملی او تاريخـــی لو يه جر گه له ټـول افغا ـ نستان څخه د خلكو د (۱۷۹۶) تاكل شويو استـازو او ۲۰۰ تنو ميلمنو په گډون پرون د انقلا بی افغا نستان په مركز كابل كی جوړه شوه .

د لو يی جر گی په پرا ـ نيستو نكی غو نډه كـــی د ا.خ.د.گ د مر كزی كميټـــی عمومی منشـــی او د ا.د.ج د انقلابی شورا رئيس ملگری ببرك كارمل، د سيا سی بيرو غړو د گو ند د مر كزی كميټی د دارالانشاء غړو، د انقلا بـــی شورا رئيسه هيات، د افغاـ نستان دخلك دمو كرا تيـــك گو ند د مر كزی كميټی غړو او د افغانستان ددموكراتيك جمهوريت د وزيرانو شـــورا غړو، د افغانستان دموكرا تيك جمهوريت د ټو لنيزو سازـ مانونو استازو او دافغانستان په دمو كرا تيك جمهوريـــت كی د دوستو هيوادو لو يو سفيرانو او شارژ دافيرانـــو برخه اخيستی وه .

د افغا نستان د زيار كښانو گرانمشر ملگری ببرك كارمل په داسی حال كی چی د ا.خ.د.گ د مر كزی كميټی د سياسی بيرو او دارالانشاء غـــــړی ور سره وو پرون له غر مـــی مخكی په لسو بجو د كا بل پو لی تخنيك انستيتوت ستر تالار د لو يی جر گی د جوړيدو ځای ته تشريف يو وړ او د تالار په وره كی په لو يـــه جر گه كی د خلكو ټا كـــل شو يو استازو په انقلا بـــی او له ولو لو نه ډكو شعارونو او پر له پسی چكچكو او په انق لابی مينی او ولولو او د احسا سا تو په څر گندولـــو سره خپل گران مشر تــــه هر كلی ووايه .

له هغه ورو سته چـــی د عظيم الشان قرآن څو آيتونـــه د ا.د.ج د عا لما نـــــو او روحا نيو نو د عا لی شورا د غړی قاری محمد نعيم عندليب له خوا و لوستل شـــــول، ملگری ببرك كارمل د لوی خدای په نامه د افغا نستـــان د آزادو خلكو لو يه جر گه د خپلـــی پرا نيستو نكی وينا په ترڅ كی پرانستله. ملگری ببرك كارمل په خپله لنډه پرا نيستو نكی وينا كی وويل :

**دلوی خدای په نامه !**

**ورونو ، خوېندو ، دافغاـ نستا ن د خلكو محتر مـــو نما يند گا نو !**

زموږ د آزاد ، مستقل او واحد وطن او د افغا نستان د زيار ايستو نكو انقلا بـــی او قهرما نو خلكو په نامـــــه، د افغا نستان د خلكو لو يـــــه جر گه دغه ستره او پر تمينـــه ملی تاريخی پيښه دوطـــــن د تاريخ په يوه حسا سه انقلابی شيبه كی پيل كوو .

د جر گو عا لی عنعنه زموږ د پلرونو او نيكو نو د اتحاد غوره سنت اوزموږ دشهيدانو او غاز يا نو ارزښتمن ميراث دی، هر وخت چی د وطـــــن د مرگ او ژوند ســـــوال د استقلال، ملی حا كميـــت، د ځمكی تما ميت د پـــــت او ناموس، آزادی، دوطن افتخار او د افغان خلكو ملی اتحـــاد د خارجی دښمنا نو او داخلی خا ئنا نو په مقا بل كـــــی مطرح شو يدی هما غه وخت زموږ د واحد وطـــــن ســــره ورونو مليتو نو، قو مونو او قبا يلو، مشران سپين ږيری او د زيار او كار زامن سره راټول شوی او د تيـــری ـ كوونكی استعمار گر دښمـــن په مقا بل كی يې د وطـــن د حيثيت ، شـــرف ، آزادی او خپلواكی څخه دفاع كړی، د وطن د سر نو شت، سو لی او امنيت په باره كی يـــــی تصميم نيو لی دی . نن تاريخ دغه او درنه وظيفه ستا سی

د وطن زيار ايستو نكو زامنو په وړاندی ، ستا سومشرانو رو حا نيو نو، سپين ږيرو او د افغا نستان د خلكو د با اعتباره نما يند گا نو مخته ددی انقلا بی لو يی جر گـــی مخ ته ايښی ده .

نن يو وار بيا د افغانستان دخلكو دښمنان يعنی دامريكا جنا يتكارامپر يا ليزم، دچين هژ مو نيزم د افغا نســـی، پا كستا نی او ايرا نی خلكو د ارادی او ورور گلوی پـــر خلاف د پا كستان نظا ميگـــر رژيم او د ايران مر تجـــــع حا كما نو زموږ د وطن پــــه پا كه خاوره تيری كړی اونا اعلان شوی جنگ يې پر ی تپلی دی هغوی د ځينو مزدورو او وطن ته خا ئنو عنا صرو په اجير كولو سره زموږ وطـــن ورانوی ، زموږ پلرونه، ميندی ورونه ، خو يندی اوماشومان وژنی او زموږ د خلكو دژوند


(۲) مخ

# دنومیالـــی هیواد په نـــامــه

(دلومړی مخ پاتی)

او کار سو له پیزه فضـــا خرا بوی او د افغا نستان د خلکو د یووالی ‌، برابری او ورووری او نیکمر غی مانـع گر ځی او زموږ د هیـواد د پر مختگ ا و ټـو لنیـزی اقتصادی ترقی او سمسورتیا مخه نیسی .

په داسی شرایطو کی باید څه وکړو، ایا چوپ او بـی تو پیره پا تی شو او بی‌ننگی ومنو یا دخپلو ننگیا لیـو نیکو نو په شان د مکار او متجاوز دښمن په مقا بل کی را پا څیږو او د لو یشـت لو یشت خاوری ، شـرف ، نا مؤس او وطن له حیثیت‌نه دفاع وکړو او دا خپـل ستم ځپلی افغا نستان په آباد ، سو کا له ، پر مختللـی او عز تمن وطـن واړوو او رنځید لی افغان خلـک نیکمر غه کړو .

د وطن تاریخ او راتلونکی زامن به هیځکله پدی کار کی زموږ غفلت او سهل انگاری و نه بخښـی .

**دافغا نستان د خلکو در نو منتخبو نما یند گانو !**

د ا.خ.د.گ او د ا.د.ج چې د وطن د خلکو، د وطـن پالونکو ویاړلو او ډیرو ښـو سننو وارث او د افغا نستان‌د خلکو اود خلکو دزا منو خدمت گاران دی .

دخلکو رایـی ته زیـات ارزښت ورکوی له‌خلکو سره پیو ند او د خلکو قوت خپله تکیه گاه او د خپلی نه ما ـ تیدونکی بقا او پا یښت رمز بو لی ، له دی امله د افغا ـ نستان ددمو کـرا تیـک جمهوریت انقلا بـی شورا د وطن د تاریخ پدی حسا سو انقلا بی ملی شیبو کی‌تاسی لو یی جر گی ته را بو لی‌چی د افغانی او اسلامی ورورولی پدی آزاده او دمو کرا تیـکه فضاگی دهیواد عمومی‌اوضاع او احوال له هرپلوه وڅیړی او د طرح شو یو مسا یلـو په باره کی د خلکو، وطن او د وطن د را تلو نکو نسلونو په مقابل کی‌د سترمسوو لیت په احساس‌سره‌تصمیم‌ونیسی

په دی لو یه جر گه کی‌له ټول هیواد څخه ۱۷۹٦ نما ـ یند گان دسیمه ییزو جر گو په نما یند گی ، په عنعنـوی آزاده او دمو کرا تیکه تو گه انتخاب شوی او دلته یـــی گډون کړیدی .

حا ضره لو یه جر گـه د افغا نستان د ټو لو خلکو د واقعی ارادی مظهره ده ،پدی لو یه جر گه کی د وطن‌دټولو ملیتو نو، قو مونو او قبایلو د ټو لو ملی دمو کرا تیکـو وطنپا لو نکو او تر قـــی غو ښتونکو طبقو او قشرونو مر بوط نما یند گان شر کت لری . په دی ملی ، وطنی او شریفا نه کار کی ستا سـی د بری غو ښتنه کوم .

**پرېږ د ی چـی د حا ضری لویی جر گـی تصمیمو نـه زموږ د شهیـدانـو ار واح خو شحاله کړی .**

**پرېږ دی چی دباتوروانقلابی او آزادو افغانانو اوچت غږ او دتوری شرنگ یوځل بیـسا د دښمنانو زړونه وچوی .**

**پرېږ دی چـی د ښمنان وپوهیږی چی افغا نانو دخپلو پلرونو رسم او دود ندی هیر کړی .**

**پرېږ دی خا رجی او دا خلی دښمنان پوه‌شی چی ز موږ د واحد وطن مستقل افغا نستان ټول او سیدونکی و رونه خلك د سو لی ، وا قعـی آزا د ی، ورووری او برا بری ، تر قی او**

**نیکمرغی په خاطر لکه فولادی سوك ، واحده اوخلل نه‌منونکی اراده لری او پرمخ ځی .**

اجازه راکړی د افغانستان د دمو کرا تیك جمهوریت د ملی سرود په خپرولو سـره دغـه با عظمته تا ریخی لـو یه جر گه پیل کړو .

له هغه ورو سته چـی د افغا نستان د دمو کرا تیـك جمهوریت ملی سرود خپـور شو ملگری ببرك کارمل وویل: تا سی خبر یا ست چی ورمه ورځ د افغا نستان د دمو ـ کرا تیك جمهوریت د لو یـی جر گی د جو ړیدو دسازمان ورکو لو کمیسیون فوق‌العاده غو نډه وکړه او د غو نډی د رئیسه هیات، د لو یی جرگی د رئیس ، د رئیس د منشی او د منشی د مر ستیال او د لو یی جر گی د لیکنی او باور لیك د کمیسیو نونو دترکیب د ټا کنی په باب یی یو لـړ پیشنهادونه تصو یب کړل.

او س د افغـــا نستـان د دمو کرا تیك جمهوریت د لو یی جر گی د جوړولو او سازمان ورکو لو د کمیسیون غړی محترم شاه نظـــر د مر کزی کمیتی منشـی او د افغا نستان د دمو کرا تیـك جمهوریت د پلار وطنی ملی جبهې رئیس صالح‌محمد زیری،

د سیا سی بیرو غړی او د افغا نستان د دمو کرا تیـك جمهوریت د شا عرانـو او لیکوالو د اتحادیی رئیـــس دستگیر پنجشیری ،دسیا ـ ســی بیـرو غـړی او د افغا نستان د دمو کرا تیك جمهوریت د مخا براتو وزیر محـمد اسلـم وطنـجار ،

د سیاسی بیرو غـړی او د افغا نستان د دمو کرا تیـك جمهوریت د وزیرانو شـورا مرستیال بریدجنرال‌محمدرفیع

د سیا سی بیرو غړی اود افغا نستان د دمو کرا تیـك جمهوریت د دولتی اطلا عاتو د خدمتو نو رئیس نجیب‌الله.

دسیاسی بیروعلی‌البدل غړ ی او د افغانستان د دموکراتیك جمهوریت د کا نو اوصنایعو وزیر محمد اسماعیل دانش ،

د سیا سی بیرو علی‌البدل غړی او د افغا نستان د دمو ـ کرا تیك جمهوریت د انقلابی شورا در ئیسه هیات د صدر مرستیال ډگرجنرال‌عبدالقادر

د افغا نستان د خلك دمو ـ کراتیك گو ند د مر کـــزی کمیتی غړی او د افغا نستان د دمو کرا تیك جمهوریت د انقلا بی شورا د رئیسه‌هیات منشی محمد انور فرزام .

د افغا نستان د خلـــك دمو کرا تیك گو ند د مرکزی کمیتی غړی او د افغا نستان د دمو کرا تیك جمهوریت د انقلا بی شورا د رئیسه‌هیات غړی نجم الدین کاویانی ، د افغا نستان دخلك دموکراتیك گو ند د مر کزی کمیتی‌غړی او د افغا نستان ددموکراتیك جمهوریت د دفاع وزیر برید جنرال نظرمحمد، دافغانستان دخلك دمو کرا تیك گو نـــد د مر کزی کمیتی غړی او د افغا نستان د دمو کرا تیـك جمهوریت د کورنیو چـارو وزیر سید محمد گلاب زوی ، د کند هار له ولایت څخـه عبدالرحیم هاتف ، عبدالواحد سرابی ،حاجی محمد خمکنی، محمد نعیم شا یان، نظام ـ الدین ، د افغا نستـــان د دمو کراتیك جمهوریـــت د اسلا می شئو نو او اوقا فو وزیر عبدالولی حجت ،کوا ټ

د پلار وطنی ملی جبهې‌دکابل ښار دشورا رئیس محمد نعیم شایان او نظام الدیـــــن د رئیس د نا یبا نو په توگه پیشنهاد شول چی له رایـی اخیستلو ورو سته د لو یـی جر گی د برخه والو له خوا د رایو په‌اتفاق تصویب‌شول.

همد غه راز د افغا نستان د دمو کرا تیك جمهوریت د اسلا می شئو نو او اوقا نو وزیر عبدالو لی حجت دلویی جر گی د منشی په تو گـه او متقاعد ډگروال کــوا ټ برید وال د لو یی جر گـــی د منشی د مر ستیال په‌توگه پیشنهاد او له رایی‌اخیستنی ورو سته د رایو په اتفـاق تصویب شول .

ورو سته د افغا نستان د دمو کراتیك جمهوریـــت د ستری محکمی رئیس نظام ـ الدین تهذ یب د باور لیك د کمیسیون د رئیس په تو گه او دستری محکمی مر ستیال ضعیفی ، غلام سرور منظور، عبدالعزیز صادق، شیخ‌محمد علی ارزگا نی، محمد سا لـم علمی، ولی او جیلا نی کارگر ددغه کمیسیون د غړ یو په

د خلکو ربښتینی استازی چی په هیواد کی په ډیروحساسو او له ستو نزو ډکو شرایطو کی جوړه شو یده د خلکو د آرامی ، نیکمر غی او خو شبختی په خا طر غــوڅ تاریخی تصمیمو نه و نیسی او د هغی پر یکړی درنـــی وبولی، د هغو په عملی کولو کی له هیڅ ډول هلو ځلـــو څخه ډډه ونکړی .

وروسته نظام الدین‌تهذیب د لو یی جر گی د باور لیك د کمیسیون رپو ټ وړا ندی کړ وی ویل : په نهه ویشتـو ولایتو نو کی د کا بل ښـــار او د خو ست په لو یـــــه ولسوالی کی په ولایتی‌جرگو کی د استازو ټاکل زمـوږ د خلکو د ملی او تاریخی عنعنو پر اساس او په دموکراتیکه او آزاده تو گه د اسلا مـــی شریعت له حکم سره سـم تر سره شول . په ولا یتـی جر گو کی د خلکو انتخا بی استا زیو د ا.د.ج دانقلا بی شورا د ١٣٦٤ کال د حمـل د میا شتی د اوولسمی‌نیټی د فرمان په تا یید او ملا ټړ دخپلو ویناوو او خبرو په‌ترخ

د لو یی جر گی وکیلا نـو پرون په خپله لو مړ نیغونده‌گی‌داړوندو چارو د بر مـخ‌وړلو له‌پاره د ر ئیسه هیئت غړی، رئیس، نور مقا مو نـه او ټا کلی کمیسیو نو نـه د پوره یووالی او پیوستون په‌فضاکی درایو په اتفاق‌وټاکل.
د ث.ا. ح عکاسی

کمیسیون په نما یند گی دغه پیشنهادونه د افغان لو یـــی جر گی ستا سی محتر مــو استازو حضور ته وړا نــدی کوی چی د هیواد ددغی ملی او تاریخی ستری جر گی کار د وطنی سرا سری سو لی‌او په هیواد کی د خیر او فلاح په غر ض رهبری کړی .

ور پسی وکیل شاه نظـر درئیسه‌هیات دغړو ،دباورلیك دکمیسیون دغړو ، اود لیکنی دکمیسیون د غړو او نورو پـه باب د کمیسیون پیشنهادونه و لو ستل چی د استازو لخوا د رایو په اتفاق تا یید شول.

دلویی جرگی درئیسه هیات غړی په دی ډول وټاکل‌شول.

ـ د افغا نستان د خلـــك دمو کرا تیك گو ند دمرکزی کمیتی عمومی منشـــی او د ا.د.ج د انقلا بی شـــورا رئیس ببرك کارمل .

دسیاسی‌بیرو غړی‌دافغانستان ددموکراتیك جمهو ر یـت د ښځو د دمو کرا تیك‌سازمان رئیسه انا هیتا راتبـزاد، د سیاسی بیرو غړی او دافغا ـ نستان د دمو کرا تیـــك جمهوریت د وزیرانو شــورا رئیس سلطا نعلی کشتمند ، د سیا سی بیرو غړی اود

د افغا نستان د خلك دمو ـ کراتیك گو ند د مر کـــزی کمیتی د سیا سی بیـــرو علی البدل غړی او منشـــی محمـــو د بر یا لــــی ،

د سیا سی بیرو علی‌البدل غړی او د کابل ښار دگوندی کمیتی منشی ظهور رزمجو ،

د افغا نستان د خلك دمو ـ کرا تیك گو ند د مر کـــزی کمیتی منشی میر صا حب کاروال، د افغا نستان دخلك دمو کرا تیك گو ند دمرکزی کمیتی منشی نیاز محمـــــد مومند ، د افغا نستان د خلك دمو کرا تیك گو ند دمرکزی کمیتی منشی او د افغانستان ددمو کراتیك جمهوریـــت د اردو د سیا سی چارو لـوی رئیس بر ید جنرال محمد ـ یاسین صادقی ، د افغانستان دخلك دمو کرا تیك گو ند د مر کزی کمیتی غـــړی او د افغا نستان د دمو کرا تیـك جمهوریت د انقلا بی شورا د رئیسه هیات د صدرمرستیال برید جنرال گل آقا، د افغا ـ نستان د خلك دمو کرا تیك گو ند د مر کزی کمیتی‌غړی او د افغا نستان ددموکراتیك جمهوریت د انقلا بی شـورا مر ستیال عبدالر شید آرین،

بریدوال، د کرخ حضـــرت صا حب، اکبر شور مـــاچ نورستا نی ، بابا مرادکارگر پیشه ور، سر دار آرین‌بلوڅ، سرجنگ ځاځی ،شیخ محمد علـــی ارز گـــا نــــی،

د کونړ له ولایت څخـــه صا حب حق‌خان ، د ملیشی قوماندان عصمت الله اڅکزی، د ملیشی قو ماندان فردوس خـا ن مو مند ، متقاعد ډ ګر جنـرا ل گــل محمد منگـــل د زابل له ولایت څخه محمد نبی توخی، له پکتیا ولا یـت څخه میرا جان ځدران ، دبلخ له ولایت څخه هلال الدیـــن بدری، د اسمعیلیه مذهب لـه مشرانوڅخه محترم‌سیدسعدی

همد غه راز پیشنهادوشو چی د رئیسه هیات له غړ یو څخه ټو لنیز ستر شخصیت او د پـــلار وطنـــی ملـــی جبهی د مشر تا به غـــړی عبدا لر حیم ها تف دی‌دلویی جر گی د رئیس په تو گـــه وټا کل شی چی له رایـــی اخیستنی ورو سته د رایــو په اتفاق‌تایید او تصویب‌شو.

همد غه راز د لوړو اومسلکی تحصیلاتو د وزارت سلا کار عبدالواحـــد سرا بـــی ، حا جـــی محمد خمکنـــی

تو گه پیشنهاد شول چی له رایو اخیستلو ورو ســـته تا یید شول .

همد غه راز محمد نعیـــم شا یان د لیکنـــی د هیات د رئیس په تو گه او هلال‌الدین بدری، مو لوی عاشق الله ، عبدالله خد متگار بختا نی ، محمد آصف آهنگ، محمــدـ ابراهیم عطا یی او عبدالواسع کارگر د لیکنی د هیات دغړو په تو گه پیشنهاد او د رایو په اتفاق تصویب شول.

د لو یی جر گـــــی د کمیسیو نونو د غړو له ټاکلو ورو سته دستری او پرتمینی لو یی جر گی مشری دهیواد ملی او ټو لنیز سترشخصیت محترم عبدا لر حیم ها تف‌ته وسپارل شوه .

ده د منني د وینا په ترخ کی دهیواد دخلکو له واکمنو او باوری استازو څخه دلویی جر گی د رئیس په تو گه د هغوی د باور خر گندولو لـه امله د مننی خر گندولو پـه ترخ کی وویل: دتاریخی‌لویی جر گی د جو ړیدو په بـاب د محترم ببرك کارمل لـــه نو ښت څخه د قدر دانی په خرگندولو سره، هیله لرم‌په دغه تاریخی لو یه جر گه کی

کی دلویی جرگی د جوړ یدو د رول او اهمیت تود هرکلی وکړ او په لو یه جر گه کی دگډون له پاره له ټول هیواد څخه ۱۷۹٦ تنه استـــازی و ټا کل شول او شر عـــی وثیقی یی وا خیستی . د لویی جر گی د باور لیك‌کمیسیون له خیړ نی ورو سته په لویه جر گه کی د خلکو د ټو لـو انتخا بی استا زیو واك دباور وړ بو لی د کار گرانـــو ، بز گرانو، کسبگرو اونورو زیار ایستو نکو هیواد پالو، رو حا نیو نو، روښنا نفکرانو د قو مونو او قبا یلو مشرانو او لو یا نو ډیر ښه استازی او د خلکو په منځ کی د باور وړ شخصیتو نه له ټول‌هیواد څخه په لو یه جر گه کـــی د استا زیو په تو گه ټا کل شویدی چی په هغو کي پـه سلوکـ ی ٦ر١١ کار گران په سلو کی ٢٦ بز گران پـــه سلو کی ٢٢ روښنا نفکـــران دی چی پو هان، ښوونکـــی ، استادان ، طبیبان ، انجنیران او کار کوو نکی دی په سلو کی ۳ ملی سودا گر او پانگه وال دی . په سلو کـــی ١١ عالمان ، ملا امامان ، خطیبان او رو حا نیون او په سلوکی

٤ر٢٥ د هیواد د قو مونو او قبایلومشران‌اوسپین‌ږیری او ټولنیز شخصیتو نه دی .

د لو یی جر گی په کار کی د گو ند او دولت مشران هم برخه لری ، په ټو لو استازیو کی په سلو کی ۲۱ د گو ند اصلی او آرما یشی غړی دی.

په لو یه جر گه کی ٢٤٧ تنو د کو چیانو او دسرحدی قومونو او قبا یلو د دایمـی مشورتی جر گو مشرانو او غړ یو په مستقیم ډول گډون کړیدی. دغه راز په لو یــه جر گه کی ۳۸ تنو د قو مـی قطعو ، ملیشه وو او دانقلاب دمدا فعینو ډلو او له دولـت سره یو ځای شو یو وسلـه والو ډلو مشرانو او ٤٣ تنو متقا عدو لوړرتبه کارکوونکو او لوړ رتبه افسرانو، قا ـ ضیا نو او ښار والانـــو او ۸۷ تنو دپخوانی ولسی‌جرگی وکیلانو او سنا تورانو گډون کړیدی .

په لو یه جر گه کـی ٦٠ ښځی د استا زیو په تو گـه ټا کل شویدی چی د ټو لنیز تر کیب په‌لحاظ پکی کار گرانی زیار ایستو نکی ، روښنان ـ فکرانی اوکار کو ونکی شاملی دی او د هغوی په مینځ کی د انقلاب د مدا فعینو د ډلو او قومی قطعو مشران او غـړی هم شته ، د لو یی جر گی‌په کار کی په وکیلا نو برسیره ۲۰۰ تنه را بلل شوی‌کسـان هم شته دی .

د افغا نستان د خلك‌دمو ـ کراتیك گوند او د افغانستان د دمو کرا تیك جمهـوری دولت د ټو لو ملیتو نـو او زموږ په گران هیواد افغا ـ نستان کی د استو گن‌قومونو او قبایلو تر منځ د ورووړی، دو ستی او پیـو ستـون کړنلاره پر مخبیا یی، د خلکو ددغه یووالی او دوستـی ښکا رندوی د هیواد د ټولو ملیتو نو ، قو مونو او قبایلو پښتنو او د هغوی بی‌شمیره قبا یلو ، تا جیکو، هزاروو، ازبکو، تر کمنو ، بلوڅا نو، نورستا نیا نو، پشه یا نو او دهیواد د نورو لږه کیـو ملیتو نو، قو مونو استـازی دی چی په لو یه جر گه کـی حا ضر دی .

دلویی جرگی استازی په‌عمومی توگه دهیواد په سیاسی ا و ټولنیزژوند کی لازمی تجربی لری، استازی‌زیاتره له‌پنځوس کالو څخه زیات عمرلری ځو ځوان استازی ، کارگران ، بزگران ، سرتیری، ډاکتران انجنیران، تخنیکران چی د ژوند په بیلابیلو اړخونو کی خپلی انقلابی او ټولنیـزی وظیفی سرته رسوی هم‌انتخاب شویدی. په سلو کـی ۲۷ استازی تر ٤٠ کالوپوری عمر لری اوپه سلوکی‌٢ر٤٦استازی له ٤١ څخه تر ٦٠ کلونوپوری اوپه سلوکی ٨ر١٦ له شپیتو کالو څخه زیات عمر لری .

دافغانستان ددمو کر اتیك جمهوریت د لویی جر گـــی داستازیو په ترکیب کی‌دهیواد دټولنیزو سازمانونو انتخا بی استازی چی د افغانستـــا ن ددموکراتیك جمهوریت د پلار وطنی ملی جبهی، د افغانستان دصنفی اتحادیو ، د افغانستان ددمو کـــراتیك جمهوریت د بزگرانو د کوپراتیفـــونو د اتحادیی ، د افغـــانستان د ځوانانوددمو کراتیك سازمان، دنوښت گرو روښانفکرانـو د اتحادیی ، د اقتصادی مشورتی

**( دوینا متن په‌دریم مخ کـی وړاندی شویدی )**

**دخبر دوام په‌پنځم مخ کی**

# دخلکو دآگاهانه ارادی یوموټی والی

**دافغانستان د خلک ددموکراتیک گوند دمرکزی کمیټی د عمومی منشی او د افغانستان ددموکراتیک جمهوریت دانقلابی شورا درئیس ملگری ببرک کارمل دهغی لار ښوونکی او له ولولو نه ډکی انقلابی وینا متن چی دافغانستان د زیار کښو خلکو دلویی جرگی په پرانیستو نکی غونډه کی یی وکړه .**

**بسم‌الله الرحمن الرحیم**

**د لویی جرگی محترمو استازو ، دافغان پتمنو خلکو ، خویندو ، ورونو او گرانو هیواد والو !**

موږ دانقلابی شرایطو او دخپل هیواد اتل افغانستان دملی و یا ړلی تاریخ په یوه مهمه او حسا سه شیبه کی چی را تلو نکی نسلو نه به په ویاړ او سر لوړی سره هغه یا ده کړی ولاړ یو . نن موږ دافغان د پتمنو او زیار کښو خلکو د ارادی له مخی او د جرگو لوړ ملی دو دته په درناوی او خپلو ژمنو ته په وفا داری سره د هیواد دټو لو ملیتو نو ، ورو نو قومو نو او قبایلو مشرا ن ، سپین ږیری او د زیار کښانو استازی او له اعتبار نه ډك شخصیتو نه را بللی دی چی زموږ دپلرو نو او نیکو نوپه دود و طنی عنعنوی لو یه جرگه جوړه او زموږ د آزاد هیواد په ړاندی د ملی طرحه شوو حیاتی مسئلوپه باب په زړ ور تیا او پوره صراحت سره تاریخی تصمیم ونیسی .

په او سنی لو یه جرگه (ستری شورا) کی چی د هیواد انقلاب او دافغانستان د خلکو له سرنوشت او راتلو نکی سره نه شلیدونکی ا ړیکی لری د هغو زړوروبچیا ن را غونډ شویدی چی د مړینی او ژوند په سرنو شت جوړ ونکو شیبو کی د هیواد د دفاع ، د ملی نوامیسو ، آزادی او خپلوا کی د سا تلو ړ لاره کی په سر ښنند نی سره جنگید لی اوستری حما سی او ویا ړونه یی زموږ د هیواد په تاریخ کی ثبت کړی دی . زموږ خلك ښه وایی چی زموږ هیواد دجرگو هیواد دی .

جرگی یعنی سلا او مشوره او دتاریخی سترو مسئلو د حل لپاره ډله ییز تصمیم دافغانستان د خلکو یو ټینگ دود واو دی . په جرگو کی تل زموږ د ټو لنی غوره فرهنگی ،ملی دمو کراتیك او تاریخی؛ دو دو نه شا مل دی او داسلام دمقدس دین له حکمو نو سره پوره سمو ن لری او افغان خلك دجرگو په متر قی ودی او بشپړ تیا سره د ربښتینی دموکراسی لو ړو مدار جو ته رسیږی او دټو لنی او دو لت په ژوند کی فعال ، آگاهانه‌او په پوره مسوو لیت سره گډو ن‌کوی. زموږ د هیواد په معا صر تاریخ کی لویو جرگو په یو نه یو ډول دهیواد دخپلواکی واکمنی بشپړ تیا لپاره او د ترقی او پرمختگ ، له جگړی او فاشیزم څخه دگر کی خر گند و لو د هیواد دملی دفا ع دپیاو ړ تیا د بی‌طرفی او له تیری کوو نکو پو ځی تړو نونو سره د نه یو ځای کیدو دسیاست د سا تلو ، له گاونډیو هیوادو سره د دو ستی دټینگښت ، دپښتنو او بلو څو دورو ټو خلکودآزادی بخښو نکی غور ځنگ ددفاع او ملاتړ ، او د افغان ـشوروی دا ړیکو د پراختیا او پرمختیا لپاره دافغانستا ن د خلکو غو ښتنی ته انعکاس ورکړی دی .

موږ و یا ړو چی دافغانستا ن د خلك دموکراتیك گوند په مشر تا به زموږ دانقلابی دولت روان سیا ست د تاریخی جرگو د ملی‌تاریخی او هیواد پا لو تصمیمو نوچی دافغانستا ن د خلکو ارمانونه او غو ښتنی پکی شا ملی دی په نو یو شرایطو کی او په انقلا بی نو ی محتوا سره خلاق او بشپړ تیا ورکوونکی دوا م دی .

او سنی لو یه جر گه چی د غوره ملی دو دو نو اوروا جو نو پر بنسټ د ثور دپریا لی انقلاب له بریالیتو ب وروسته دلو مړی ځل لپاره جوړیږی ستری حیا تی او مهمی دندی په مخکی لر ی .

دغه لویه جر گه د هیواد او انقلاب د تاریخ په د غه پړاو کی ستری ارز ښتناکی مسئلی تر څیړ نی او غور لاندی نیسی .

هغه مسئلی چی د هیوادله را تلونکی او برخه لیك، دانقلاب او خلکو له راتلونکی او زموږ د بچیانو او دسباله نوی طراز نسلو نو سره نه شلیدو نکی پیوند لر ی ، دافغانستا ن ددموکرا تیك جمهوریت انقلا بی شورا عنعنوی لویی‌جرگی ته‌په داسی حا لا تو کی بلنه ور کړیده چی د ثور انقلاب او زموږ هیواد په غو څه او نه په شا تلو نکی تو گه هغه لاره چی د سو لی ، تر قی او دانسانانو د هو ساینی او نیکمر غی په لور پای ته رسیږی گام ایښی دی . څرنگه کو لای شو خلك نیکمر غه او هیواد ودا ن کړو .

دغه هد ف ته د رسیدوپه خا طر د خلکو پو هه او اراده ضرور ده د لو یی جر گی فیصلی د هغه په سر ته رسو لو کی مرسته کوی . خلك او زموږ هیواد دا مپر یا لیزم او ار تجا ع له تیری ا و د ریگن داداری او دیو شمیر گا ونډ یو هیوا دو د ارتجا عی حکو متو نو له افغا نی ضد نا اعلام شو ی جگړی سره چی څه کو ی دغه جگړه لا زیا ته سخته لا پسی خونړی او لا پسی پراخه کړی مخامخ شوی‌دی . پدی نا اعلام شو ی جگړه‌کی چی امپر یا لیزم او دهغه اندیوا لا نو پر موږ تپلی ده دمرگ او ژوند مسئله زموږ د هیواد د ملی خپلوا کی مسئله ،دافغان خلکو د آزادی اواسارت مسئله په‌منځ کی‌ده .

څنگه کیدای شی چی له بهر څخه صادر شو ی وسله وا ل انقلاب ضد کسا ن په بشپړه او وروستی تو گه ما تی وخو ری او په افغانستان کی سو له ، آرا می امنیت او نظم ټینگ شی .

له کومی لا ری کیدای شی د هیواد په ټو لو ځایو نو ،په هر گو ټ کی د گټوراوزغنده سو له ییز کار لپاره شرایط برابر شی او دټو لو ولایتونو ملیتو نو او قو مو نو ټو ل هیواد پا ل یو مو ټی اومتحد اودانقلاب ضد باندو نو پرخلاف ودریږی او بر یا لیتو ب او سرا سری سوله چی له مودو مودو څخه را پد ی خوا یی ستر‌گی په لاره یو تا مین شی . دافغانستا ن د خلکو داستا زو لو یه جر گه د غو مسئلو ته د خوا ب د وړاندی کو لو او دگډ عمل او دهیواد ددفا عی قدر ت د ټینگښت‌او د افغانستا ن ددښمنا نو پر خلاف دعاد لا نه مبار زی او د هغو ی د چنگ او بریا لی حل په خاطر جوړیږی .

لومړی مسئله دا ده چی باید څه و کړو او څه ډو ل باید عمل و کړو چی له پاکستا ن او ایرا ن سره پو لی‌نور انقلا بی افغانستان ته له بهر څخه د لارو هونکو باندیتا نو ا ودوسلو دننو تلو لار ی نه و ی. او د هیوا د دښمنان و نه کړای شی په غیر قانونی تو گه هیواد ته دننو تلو لاره پیداکړی .ددغه کار لپاره د لویی جرگی یو مو ټی کوونکی اراده اود هغی الها م بخښونکی بلنه په کار ده . څه باید و کړو چی د هیواد داقتصادی اوټولنیزی ودی او په‌تیره بیا دولسوالیو علاقه داریو او د هیوادد‌لریو سیمو او قبایلی سیمو دپرمختیا اودکو چیانو د ژ وند د شرایطو د ښه وا لی په برخه کی دانقلابی واکمنی پرو گرا مو نه عملی شی اوپه خپله د سیمی زیار کښا نـ پدی کار کی ستر اومستقیم رو ل و لو بو ی .

ددغه کار لپاره د هیواد دخلکو آگا هانه ا راده چی‌په لو یه جر گه کی تجسم کیږی ضروری ده . او سنی لو یه جرگه هغو کسانو ته غوڅ ځواب دی چی د ثور انقلاب او په‌انقلا بی قدر ت باندی دروغ وا یی او په شیطا نی سره ادعا کو ی چی گنی د گوند کار د خلکو کار نه دی.

او سنی لو یه جر گه دانقلاب او هیواد د دفـاع، د سو له ییز او ر غنده کار د شرایطو د تا مین لپاره او د هیواد د آبا دی او داوسنیو او را تلونکو نسلو نو دهوسا یی او نیکمر غی لپـاره د هیواد ټو لو خلکو ته بلنه ده .

کوم کسا ن زموږ‌دوستان دی او له موږ سره مرسته کو ی چی د هیواد نیکمر غه را تلو نکی جوړه کـړو او د هیواد د خپلوا کی اوملی واکمنی دفا ع و کړو او کو م کسا ن زموږ د ښمنا ن دی او د هیواد خلك په وینو لړی او زموږ د خلکو سو له ییز ژوند او کار او ز مو ږ د آزادی او تر قی ځنډ کیږی .

ددغی لو یی جر گی ملی او تاریخی دنده او مسوولیت دی چی په دا گه او غو ځی پیاو ړتیا سره دغو پوښتنوته افغا نی، انقلا بی اومتر قی ځوا ب ور کړی .

**محترمو استا زیو !**

زموږ تاریخ د استعماری ضد ، آزادی غو ښتنی او د هیواد پا لنی له مبارزو څخه ډك دی افغان خلك زړور ، آزادی غو ښتو نکی اوهیواد پال خلك دی کله چی زموږ هیواد ته خطر متوجه شویدی د مړینی او ژوند په شیبو کی دمورنی وطن دپیر ښه بچیا ند قومونو ، قبایلو او په هیواد کی دو رو ښو ، قو مو نو قبا یلو او ملیتو نو بچیـانـ سره را ټولشوی او داستیلا گرانو، اشغالگرانو، تیری کوونکو او لاس وهو نکو استعمار گرانو او امپریا لستا نو په وړا ندی دخپلواکی‌او وسپینیز سوك په‌څیر یی په سر ښنند نی سره د هیواد د نوامیسو او ملی گټو دفاع کړیده .

د انگلیس داستعمار گرانو، اشغا لگرانو، پر خلاف ز موږ دخلکو آزا دی غو ښتو نکی دری جگړی ، او همدا رنگه د سلطنتی تور استبداد پر خلا ف د هیواد پا لو مشرو طه غو ښتو نکو مبارزی زموږ د هیواد د خپلواکی ، آزا دی ، تر قی او د ټو لنیز عدا لت د پر مختگ د لوړ تیا په خا طر دز ړورو مبا رزو څر گندی بیلگی دی .

زموږ د هیواد د انقلا بی غور ځنگ په تاریخ کی د افغا نستان دخلك دموکراتیك گو ند جوړیدل د پاملر نیوړ ستر ټکی دی چی د هیواد زیار ایستو نکو څه مـوده مخکی د هغه د شلمی کالیزی پر تمین جشن و نیو ، د۱۳٤۳ کال د جدی په ۱۱ نیټه د افغا نستان دخلك دموکراتیك گوند بنسټ دار تجاعی ضد، امپر یا لیستی ضد استبدادی ضد، او زموږ دخلکو د دموکرا تیکو آزادی غو ښتو نکو تر قی غو ښتنی او هیواد پا لنی د مبارزو د ډیرو ښو روا جو نو د وارث او دوام ور کوونکی په تو گه‌کیښودل شو .

د افغا نستان د خلك دموکراتیك گوند ، له جوړیدو څخه تر اوسه پوری ثا بته کړی چی د مفکوری او د انقلابی عمل گو ند او هیواد پال او انتر نا سیو نا لست گوند دی. دغه گوند ز موږ په هیواد کی یوا ز نی گو ند دی چی په ژوره تو گه یی درك کړه چی د ملی او دموکرا تیك انقلاب په اوسنی اوتاریخی پړاو کی دفیو ډالی، سلطنتی ، ارستو کرا تیکی او بیرو کرا تیکی واکمنی د ړنگو لو او د ملی ربښتینی آزادی ، ټو لنیزی تر قـی د تا مین په خا طر د یوا ز نـی عملی او سمی لا ری په توگه دخلکو پرمخ دبریالیتوب ربښتینی لز لید پرا نیزی.

د افغانستان د خلك دموکراتیك گو ند له خوا و هل شوی‌لار دستمگرانو ، استثمار گرانو ، او امپـر یا لیستی استعمار گرانو په وړا نـدی دزیار کښا نو د ملـی ستر تاریخی بری لار او د سختو جگړو او آزمو یلو کړ لیچونو څخه د تیریدو لار وه .

د افغا نستان د خلـك دمو کرا تیك گو ند د مبارزو تاریخ دسولی ، دمو کرا سی، آزادی، ملی خپلواکی ټو لنیز عدالت، برابری ، و روری او هر اړخیز ټو لنیز پر مختگ د مقد سو اصو لو پر بنسټ ملی او انقلا بی هد فو نو ته د وفا داری تاریخ دی .

دغه گوند د مبا رزی لـه بیلو بیلو ښو څخه په کـار اخیستلو او د خلکو په منځ کی په تنظیمو ونکی پـراخ فعالیت سره دسلطنتی رژیم په را پر ځو لو کی اساسی رول و لو باوه .

سلطنت په داسی وخت کی را و پر ځول شو چـی واکمنی ارتجا عی سلطنتی ټو لنی د دمو کرا تیـك او انقلا بی غور ځنگ له لوړتیا نه د ویری له امله د سیمی‌له ډیرو تورو ځوا کو نو سره د ملگر تیا په لټه کی شوی او د منحطو فیو ډالی نظام د پا تی کیدو او تثبیت لاری یی لټولی . سلطنت د ار تجاع په ملگر تیا غو ښتل زموږ د هیواد په اوبو او خاوره‌باندی دپلورلو معامله وکړی . لکه څنگه چی د هغوی نا خلفو کورنیو سلطنتی پخوا نیو امیرانو د افغا نانو د خا وری په باب د ملی خیا نت په دا ډول کار لاس پوری کړی او کړی و او د افغا نا نـو د خاوری یوه برخه یی پـه خا ئینا نه تو گه ا نگلیسی استعمار گرانو ته وسپارله .

د سلطنتی استبدادی‌رژیم په نسکو ریدو سره د افغانستان آزاد او زیار کښـ خلك دی ته ستر گی په لار وو چی لوږه ، بیسـوادی ، ناروغی بیږی اخیستل، اختلاس لو ټماری، بی عدالتی ظلم د خلکو ځوروونکی ظلم او ستـم او د پیړ یو ورو سته پا تـی والی د تیرو منحطو نظامونو ناولی میراث پای ته ورسول شی .

دد اود رژیم د غور ځنگ له ودی او دخلکو دغو ښتنو د سطحی له لوړ تیا نه‌دویری له امله دهیواد او خلکو په وړا ندی خپلی ژمنی هیری کړی او د سیمی له ارتجاع‌او امپر یا لیزم سره یـی د سا زښت لار غوره کړه او پـه دی ډول د پر گنو روا غو ښتنی تر سره نه شوی .

دا کار د حکو مت پر ضد د خلکو د بیلا بیلو قشرونو ژوری نا راضی گا نـی را وپارولی اوخلك ددغه‌ناوړه حا لت د پای ته رسیـدو غو ښتو نکی وو. د استثمار گرانو له پاره په دوی پوری د بل تر لی ځواك د منځ تـه را تلو لپاره امکا نات پای‌ته رسید لی وو .

د ټو لنی انقلا بی بد لون او خلکو ته د قدرت لیږدول دور خـی د ستور و . د ثور انقلاب د وگړ نی ضدرژیمونو د ارتجا عی سیا ستو نو او خپل سری په وړاندی‌تاریخی او ورځ په ورځ زیا تیدونکی نارضایتی ته د یو قا نونمند ځواب په تو گه زموږ دټولنی د پراخو زیار کښو قشرونو او طبقو له خوا د افغانستان دخلك دمو کرا تیك گو ند په مشری بر یا لی شو زموږ انقلاب په خپل مخکی عمومی دمو کرا تیك هد فو نـه ایښی دی دفیو ډالی او ما قبل فیو ډالی اړیکو اودامپر یالیزم دنفوذ او دسیسو پای ته رسول ، د ځمکو ا و او بـو ددمو کراتیکواصلا حاتوتطبیق دملی صنایعو او ټول ملـی اقتصاد وده ،دپرگنو دژونـد دسطحی لوړ تیا په نـوی او مترقی ماهیت سره دافغانستان د خلکو د ملی فر هنگونولوړ تیا، دټولنیز اوسیاسی ژوند دموکراتیزه کـول او د سوله ییز بهرنی سیاسـت تعقیب‌ زموږ دانقلاب مهم‌هدفونه دی .په افغا نستان کی‌د ثورانقلاب دهیواد دخلکوملی، تاریخی خصو صیتو نه ، مذهب او فرهنگی دودونه او زموږ د واحد هیواد، دوروڼو ملیتو نو او قومونو رواجو نه اوعنعنات په‌نظر کی نیسی . موږ د هغی ملی نابرابری دپای ته رسیدو چی دتیرو ارتجاعی رژیمونـو میراث دی اود حقوقو دبرابری اودپر مختللی دمو کراتیکی او د نوی انقلابی ټولنی دجوړولو په کار کی د ټولو د برخی اخیستنی‌پر بنسټ دملیتونو، قومونو او قبایلو دیو موټی والی لپاره دلازمو شرایطو د برابرولو غو ښتو نکی یو .

دثور انقلاب په افغانستان کی د فیو ډالی ،سلطنتی، ارستو کراتیکوظالمو استثمارگرانو ،سود خورو ،فاسدو او ملی ضد دولتی لوړ رتبه‌بیروکراتانو جابرانه واکمنی چی‌د پرگنو دوینو او ربړو نو په بیه یی خپل طفیلی ژوند ته دوام ور کاوه پای ته ورسوله اود افغانستان خلك یی‌د هیواد په ربښتینو سردارانو باندی بدل کړل .

زموږ انقلاب له لوړو اوژورونه ډك تنگ لوری درلود دغه انقلاب دپرگنو دټولنیزعمومی وروسته پاتی والی اودپرگنو دډله ییزی بیسوادی په‌شرایطو اود هغوی دسیاسـی بشپړی تجربی دنشتوالی په شرایطو کی بریالی شو اوله لو مړیو و ر ځو څخه یی له‌ستونزو سره مقابله وکړه‌او په تیره بیا په قصدی توگه‌د نړیوال امپریالیزم او د هغه د انـډیوا لا نو لـه زیا تید و نکی لا س و هنی او مقاومت سره چی زموږ پـه کور نیو چارو کی یی پراخـه لاس وهنه پیل کړه مخامخ شو . هغوی له پر ځول شو یو واکمنو ټولنو او غو لید لو کسانو څخه ناوړه استفا ده کوی .

دهیواد داقتصادی او ټولنیز ژوند دموکراتیزه کول د اقتصادی مسئلو د ټولنیزو بدلونونو تحقق او د ملی او قومی مذهبی ،عنعنوی اوفر هنگ په خیر دسترو ټولنیزومسئلو حل دگوندی، دولتی مشرتابه له جدی‌اشتباه گانو، ښوئیدنو او انحرافاتو سره یوځای‌و.

ټولو ته معلو مه ده چی په نتیجه کی ډیری هغه دندی‌چی دافغانستان د دمو کرا تیك جمهوریت دانقلابی دندو په اساسی کرښو کی اعلام شوی وی سرته ونه رسیدلی اود اقتصا دی او ټـو لنیـز و بـدلو نو بهیرو نه لـه خنډونو سره مخامخ شول.

دافغا نستان دخلك دموکراتیك‌گوند دسالمو او اصولی ځوا کو نو پـه ا صو لـی زړور او په خپل وخت عمل سره د۱۳۵۸ کال دجدی په شپږمه نیټه دهیواد په‌انقلابی بهیر کی دانحرافی خطر ناك تگ لوری او له ار تجا عی‌تورو ځواکونو سره ملگرتیـا اود هیواد دملی‌گټوپر خلاف توطئه پای ته‌ورسیده . پد ی ترتیب زموږ گوند،ذهنی‌گرایی،انحراف ما جرا غو ښتنه ،شخصیت‌پالنه ترور او زندی کول دانقلابی دموکراتیك قانونیت تر پښو لاندی کول اود ملی دموکراتیك انقلاب د پر مختیا په‌ضرر وری پراوونو باندی دستر گو پټو لو په مقصد بی ځایه هلی ځلی‌له منځه یووړی .

له ستونزو او ددښمنا نود خنډونو له پیدا کولو سره‌سره زموږ خلکو په اتلـوا لو مبارزو سره‌ستر بریالیتوبونه تر لاسه کړی دی د ثوردملی‌او دموکراتیك انقلاب‌دپیر سترارزښت د زیـار کښا نـو نـوی او انقلابی واکمنی ده چـی د هغی له مخی په هیواد کـی سیاسی نوی سیستم او نظام جوړ شو او دافغا نستان‌دخلك دموکراتیك گوند دافغانـی ټولنی درهبری کوونکی‌ لوری ور کوونکی‌ او سازمان ور کوونکی ځواك په توگـه د هغی په مرکز کی دی.

د ثور انقلاب یوستر ارزښت د افغا نستان د دمو کرا تیك جمهوریت د اساسی اصو لو انفاذ دی چی د هغو پر‌بنسټ زموږ د ټو لنی د سیا سـی اقتصادی او ټو لنیز ژوند اساسی لوری مشخص کیږی او د افغا نستان ددموکراتیك جمهوریت د ټو لو اتبا عـو حقوق او آزادی تضمینیږی د افغا نستان د دمو کراتیك جمهوریت د اساسی اصو لو پر بنسټ د هیواد ټو لوخلکو له ربښتینو او دمو کرا تیکو حقو قو او آزادیو څخه گټه واخیسته د افغا نستان دموکرا تیك جمهوری دولت د هیواد ټو لو اتبا عو ته دژوند حق او د اسلام د مبین دین د منا سکو د اجرا او د ټو لو ادیا نو د پیروانو لـه پاره د مذ هبی مرا سمو د ادا کو لو اودبشپړی آزادی‌د مصو نیت ، دکار حق ، درو غتیا دوفایـی او د ټو لنیزو تا مینا تو حق، د زده کـړی حق ، او د هیواد دنظم او امنیت په چو کا ټ کی په دمو کرا تیکو متر قی او ټو لنیزو سازمانو نو کی دهیواد پا لنی د یووالی حق او دکورنی اود کور د مصئو نیت‌حق، او د دولت ارگا نونو ته د فردی او ډله‌ییز شکایت او د احوال د پو ښتنی حـق تضمینوی او له دغو حقو قو او نورو ټولو دمو کرا تیکو حقو قو او آزادیو څخـه د گټوری استفادی شرا یـط برابروی .

دهیواد څوانه کار گـره طبقه د ټو لنیز ژوند په ټولو برخو کی په فعا له تو گـه برخه اخلی او ورځ په ورځ د کارگرانو ژوند ښه کیږی له کمی او کیفی پلوه د دوی د مشر تا به رول په ټو لنه‌کی وده او بشپړ تیا مومی .

مو نږ په ویاړ او غـرور سره څر گندوو چی د افغانستان دمو کرا تیـك جمهوریت په تاریخ کی لومړنی دولت دی چی. دځمکو اواوبو د دمو کرا تیکو اصلا حاتو په کو لو سره یی په‌سلگونو زره هکتاره ځمکه په وړیـا ډول د بی ځمکو او لږ ځمکو بز گرانو پر سلګو نـو زرو کورنیو باندی و ویشله او پـه دی ډول یی د بز گرانـو پخـوا نـی هیلـه تـرسره کړه او د هغوی له‌پاره یی له ځمکی څخه داستفادی امکا نات برابر کړی او کوی یی. د ځمکو او اوبو د دموکرا تیکو اصـلاحا تو پر لـه پسی او بشپړ سر ته رسول زموږ د انقلاب له اساسـی هدف څخه‌دی . موږ د ځمکو او اوبو د اصلا حا تو د تطبیق په‌ډگر کی د تیروتنو او ذهنیگریو په پای ته رسولو سره د بز گرو د شورا گانو د اوبو د لانجو د حل دکمیټو د جوړولو د کو پرا تیفـی غور ځنگ د پراختیا او له‌ځمکی څخه دښی استفادی له پا ره بزگرانو ته د مالی ، ما د ی او تخنیکی مر ستو دپراختیا له لاری د بز گرا نو فعاله برخه‌اخیستنه‌تامینوودافغانستان دمو کرا تیك جمهـوری حکومت تل بز گران دکرنی دتخم، کیمیاوی سری، د نباتی او حیوا نی آفتو نو اوخزندو ضد درملو له پلوه تا میـن کړی او د کر نی میکا نیزه ستیشنو نه او مسا عـد پورونه یی دبزگرانو پـه واك کی ایښی دی .

(څلورم مخ)

# دخلکو د آگاهانه ارادې يو موټې والی

ددریم مخ پاتې

د افغا نستان دمو کراتیک جمهوري حکو مت د هیواد د بز گرانو د ژوند د سطحې د لوړ تیا په خا طر د پومبې او جغندرو د پیرو دلو بیې دوه ځلې زیا تې کړې او د کیمیاوي سرې بیه یې ټیټه کړې ده .

د انقلابي دولت د هلوځلو په نتیجه کې په ۱۳۶۲ کال دکرنې داسا سي محصو لا تو دتولید سطحه د ثور انقلاب نه دمخکې کال سطحې ته لوړه شوه کو پرا تیفې غور ځنګ د اقتصادي او ټو لنیز فعا لیت د نوي بنې په تو ګه په تیره بیا دکرنې په برخه کې پرا ختیا مومي.

همدا اوس بزګران دکروند ګرو دسلګونو شورا ګانو او داوبودلانجو دحل د کمیټو له لارې دځمکې اواوبو دستونزو په‌حل کې‌بر خه اخلي.

دافغانستان دمو کراتیک جمهوري دولت دقو مونو ، قبایلو اوملیتونو تر منځ د رښتینې يووالي او برابرۍ او په ټولنیز ژوند کې د هغو ی دفعالې برخې اخیستنې او په هیواد کې د انقلاب ددفاع په برخه‌کې لازمې لارې چارې په سوغات راوړي . همدا اوس دهیواد د اوسیدونکو ټو لو ملیتونو ، قومونو او قبا یلو استازي د افغانستان د خلک دموکراتیک ګوند ددولت د مرکزي اوسیمه ییزو ارګانونو او دټولنیزو سازمانونو په رهبرۍ او دلیکو په ترکیب‌کې برخه لري . د افغانستان دموکراتیک جمهوري دولت د افغانستان دخلک دمو کراتیک ګوند په مشرۍ تل د هیواد د وړوړو خلکو دملي فرهنګو نو ودې ته ژوره پاملرنه کړې‌ده. دهیواد سره وروڼو ملیتو نو اوقومونو دلومړي ځل لپا ره ددې امکان پیدا کړ چې په خپلو مورنیو ژبوورته زده‌کړې ورکړ شي او له مطبو عا تو او راډیویي خپرونو څخه ګټه واخلي .

دغه راز د افغانستان دمو کراتیک جمهوري دولت د کوچیانو د میشته کیدو کا ر دهغوی دژوند د شرایطو د ښه والي دخرڅایونو د حالت دښه والي او دهغوی په ګټه دنورو لازمو اقداماتو کار ته همیشنې پاملرنه کوي . انقلابي واکمنې د اسلام مقدس دین او مذهبي دودونو ته په صادقانه درناوي سره‌دمذهبي دودونو او مراسمو د آزادانه سرته رسیدنې لارې چارې برابرې کړې . دمدرسو ا و مذهبي موسسو له جوړولو سره ددولت ستري مر ستې، دعالمانو او روحانیونو سر ه مرسته، دحاجیانو لپاره د بې سارو آسانتیاووبرابرول، د مذهبي باوري سازمان په توګه دعالمانو او روحانیونو دعالي شورا جوړیدل او د افغانستان د دمو کراتیک جمهوریت داسلا مي شئو نو اواوقافو وزارت ته د اسلامي شئو نو دریاست لو ړول د اسلام مقدس دین ته د ګونداو دولت دکلکې پاملرنې او د خلکو مذهبي عقیدو ته‌ددرناوي ستري بیلګې شمیرل کیږي.

دانقلاب په بریالیتوب سره دلومړي ځل لپاره په سیاسي، اقتصادي، ټولنیزو، اوفرهنګي برخوکې دښځو او نارینه وو تر منځ برابر حقوق اعلام شول همدا اوس په لس‌ګونو زره تنه افغاني پتمنې ښځې دکار ،تولید،اداري،زده کړې او دهیواد او انقلاب ددفاع په بهیر کې مستقیمه برخه لري.

زموږ د انقلاب نوم د بې سوادي پرخلاف له عمومي مبارزې او دښوونې او روزنې دسیستم له ښه والي سره نه شلیدونکې اړیکې لري تر اوسه دبې سوادي پر خلا ف دعمومي مبارزې پر اساس څه دپاسه یو میلیون تنه با سواده شوي دي اوپه سل ګونو زره تنه دلیك لوست په زده کړه بوخت دي . دلیك لوست زده کړه زموږ دفرهنګي انقلاب په زړه‌کې ځای لري ،د انقلاب له بریالیتوب وروسته د ښوونې ریفورم په تطبیق سره د ښوونې او روزنې سیستم وطنپاله او مترقي نوی محتوا موندلې ده . د ښوونځیو دمنځنیو زده‌کړو دمو سسو او لوړوزده‌کړو شبکې‌پراخیږي‌او دټولنې دزیار ایستونکو بچیانو دسیاسي،ټولنیزې ، مسلکي‌او تخنیکي پوهې دسطحې لوړتیا ته اساسي پاملرنه وشوه چې دهغو ستري بیلګې د کارګرې پوهنځۍ جوړیدل او بهر نیو هیوادو ته په تیره بیا دوست سوسیالیستي هیوادو ته د تحصیل او زده‌کړې په خاطر دهیواد دزرګونو ځوانانو لیږل اودهیواد د لوړو او مسلکي زده کړو په موسسو کې د زیار ایستونکو بچیانو منل دي له انقلاب څخه وروسته زموږ په هیواد کې نوی مطبو عاتي سیستم جوړ شو او درادیواو تلویزیون شبکې نه یوازې په مرکز بلکې په یوشمیرولایتونو کې پراخیږي درادیو یې او تلویزیوني پرو ګرامونو د خپرونو ساعتونه د ورځپاڼو او جریدو تیراژ او دکتا بونو خپریدل څوځلې زیات‌شویدي.

دمعاشونو د زیاتوالي د سبسایډیو دمنلو ، د خلکود پرګنو دلومړنیو اړتیاوړموادو دوړیاویش ، داستو ګنې د اپارتمانونودویش، دکارګرانو او زیارکښانولپاره داستراحت ځایونو د جوړولو او نورو مرستو له لارې د زیار کښانو دژوند دسطحې ښه والي ا و لوړتیا زموږ د انقلاب د ارزښتونو په جمله کې دي .

د اقتصاد دولتي سکتو ر دملي اقتصاد دډیرې دینامیکې او خوځندې برخې په توګه تل وده او بشپړ تیا کوي ا و ګوند او دولت دهغه ودې ته همیشني پاملرنه کوي څکه دغه سکتور دهیواد داقتصادي پرمختیا او ثبات اساسي عامل دی .

زموږ د انقلاب ارزښتو نه په اقتصادي ډګرکې دارتجاع او امپریالیزم دنا اعلام شو ی جګړې له دوام او اقتصادي باندیتیزم سره سره دیادونې وړدې دولتي پلانونه تطبیقیږي دخپلې خوښې او اشر کارونه سازمان مومي او دموسسو د دبیا جوړولو او دنوو پروژو دجوړولو لپاره ستر کارکیږي چې دغو عواملو په هیواد کې داقتصادي ثبات په تامین کې ارزښتناك رول لوبولی دی.

وسله و ال انقلاب ضد کسان او دهغو باداران نه دي بریالي شوي په هیواد کې داقتصادي‌ګډوډولو ،دورانیو، قحطې او لوږې دپیدا کولو په باب کرغیړنې‌نقشې عملي کړي .

د افغانستان دمو کر اتیك جمهوري دو لت په خپل اقتصادي سیاست کې‌دټولنې دبیلابیلو قشرونو ګټې په‌پام کې نیسي اوله ملي پانګوالو کوچنیو سوداګرو اوکسبګرو سره داوږدې مودې ګټوره مرسته تعقیبوي او دخصوصي او مختلطو سکتو رونو ملا تړ کوي .

دهغو ماشومانو برخه لیدته‌پاملر نه چې د هیواد راتلونکي جوړوي زموږ د انقلاب له انساني ژور ماهیت څخه پیدا کیږي زموږ په‌هیواد کې له انقلاب وروسته د ماشومانو او تنکیو ځو انانو لپاره دپالنځیو ، وړکتونونو، روزتونونو دمانیو اواستراحت ځایونو پراخې شبکې جو ړې شویدي دغه ټول‌ددې‌خرګندوی دی چې دماشومانو دسبا د ویاړلې نسل ځارنه د هغو له ننني سالمې روزنې سر ه عملي ضمانت پیدا کوي .

دافغانستان دموکراتیك جمهوري حکومت د خلکو د روغتیا دایمې ځارنه دماشو م اومور ساتنه او په هیواد کې دروغتیايي خدمتونو ښه والي خپله‌یوه ستره دنده بولي ، دروغتیايي خدمتونو ښه‌والي، دساري ناروغیو په وړا ندې مبارزه ، طبي وړیامرستې‌اوپه محلاتو کې د عامې روغتیا د شبکو پراخوالي په انقلا بي نویو شرایطو کې امکان پیدا کړیدی .

دافغا نستان دخلك د دمو کراتیك ګوند ټولنیز سیاست دانقلاب په اوسنې پړاو کې دکارګرانو ، بزګرانو ،کسبګرو روښانفکرا نو ، سو دا ګرو، ملي پانګوالو او عالمانو ، روحانیونو ، سپین ږیرو اود قبایلو د هیواد پالو اوکوچیانو په ګډون دټولنې د ټو لو ځواکونو طبقاتو او ملي او دموکراتیکو قشر ونو د جلبّ له مخې د انقلابي بدلونونوپه بهیر باندې ولاړ دی . له ثور انقلاب وروسته د انقلا بي واکمنې دستنو د پرمختیا او پراختیا په مقصد د صنفي اتحادیو، دبز ګرانو دکوپرا تیفونودتحادیې، دافغا نستان دځوانانودمو کراتیك‌سازمان، دافغانستان د ښځو ددمو کراتیك‌سازمان ، دایجاد ګرو روښانفکرانو د اتحادیو د جوړیدو او نورو ټو لنیزو سازمانونو د جوړیدو له لارې ددولت په اداره او ټو لنیزو چارو کې دزیار ایستونکو عملي او رښتیني امکانات برابر شول . دغه سازما نونه سیاسي او ټولنیز ژوند ته دزیار ایستونکو په فعال جلب کې ورځ په ورځ زیاتیدونکی او ډیر ستر رول لوبوي .

زموږ دګوند او انقلا بي دولت د اصولي سیاست په رڼاکې دخلکو پراخو پر ګنو ددولتي او ټولنیزو چارو په حل کې دبرخې اخیستنې‌عملي امکانات‌تر لاسه‌کړیدي دولت دټولنیزو ساز مانونو هغه سیستم چې د پلار وطني ملي جبهې په وجود کې د انقلابي واکمنې‌دیوه تکیه ځای‌په‌توګه جوړشویدي پرله‌پسې ټینګیږي اوپه ټولنه او دولتي چارو کې زیاتیدونکی رول لوبوي . دغه کار له خلکو سره د ګوند نه شلیدونکي پیوند ونه لا زیات ټینګوي موږعقیده‌لرو اوخوځو خله مو اعلام کړې د ی چې انقلابي واکمنې دخلکو په پوهې او مرستې سره او پر ګنې دانقلابي واکمنې په مرسته پیاوړې دی. د۱۰ خ ـ

دموکراتیك‌ګوند اودافغانستان ددموکراتیك جمهوري دو لت دنوی عادلانه ټو لنې دجوړولو په مقصد دضروري او اصولي کا ر په توګه له پر ګنو سره د پیوند دټینګیدو لپاره پر له پسې اوهر اړخیز کـار ته دوام ورکړی .

د انقلاب وروستي بریا ـ ښتونو اونه ماتیدل پدې کار کې نغښتي دي . دملي دمو کراتیك انقلاب په بریالي اجرا کې د هیواد د زیارکښو پرګنو دلازیات جلب، په کلیو کې ددولتي چارو په اداره او په ټولنیز ژوند کې دهغوی‌دبرخې اخیستنې د تامین په خا طر د افغانستان ددموکرا تیـك جمهوریت ددولتي قدرت ا و اداري دسیمه ییزو ارګانونو قانون تصویب شو. ددغه قانون له مخې په ولایتونو ا و ولسوالیو،ښارونو، علاقه‌داریو او کلیو کې په شورا ګانو ، (جرګو) کې دخلکو ا ستازي ددموکراتیك انتخاباتو پـر اساس انتخابیږي . ددولتي قدرت او اداري دسیمه ییزو ارګانونو استازي پلار و طني ملي جبهې ته کاندید دي‌چې دهغې په ترکیب کې دټولنې دټولو زیار ایستونکو اودمو کراتیکو قشرونو او طبقـواو دهیواد دټولو قومونو قبایلواو ملیتونو استازي له توپیر ا و امتیاز پرته برخه اخلي اود هغوی اجرائیه کمیټه په کلیو کې دواکمنې نوي ارګانو نه جوړوي په کلیو کې ددولتي اداري لازیات دموکراتیزه‌کول له خلکو سره ددولت‌یووالي او پیوند ټینګوي او پراختیا ورکوي له دولتي دستګاه سره مرسته کوي چې دکلیوددخلکو داړتیاوو حل ته لا پسې نږدې شي او طرحه شوي مسئلې ډیر ژر او زیاتي هر اړخیزې دزیارایستونکو په‌ګټه‌حل‌کړي.

**محترمو استا زیو :**

دانقلاب دبریالیتوبونو ارزښتونه‌په لاپسې ډیر ستروای که چیرې دافغا نستان ددمو کراتیك جمهوریت پر خـلاف دامپریالیزم، هژمونیزم اوارتجاع نااعلام شوې جګړې‌دوام نه‌درلو دلای دانقلابي افغانستان دښمنان زموږ دهیواد په کورنیو چاروکې دلاس‌وهنې او زموږ دخلکو او هیواد پر ضد دتیرې اندازه پراخوي دا کاردافغانستان د ا نقلا ب دسوله ییزې بشپړ تیا او د خلکو په ګټه داقتصادي ټو لنیزو بدلونونو دچټك تحقق ستر خنډ ګڼل کیږي .

دانقلابي افغا نستان پرضد دنا اعلام شوې جګړې اصلي چلوونکی دامریکا جنایتکـار امپریا لیزم دی په څو ورو ستیو کلونو کې دامریـکا د متحده ایالاتو امپریا لیزم اود هغه‌اندیوالانو په خپلو ورا ـ نکارو افغاني ضد فعالیتو نـو کې څه‌دپاسه یو ملیارد ډالـره لګولي دي .

پاکستان زموږ دهیواد پـه کورنیو چارو کې دلاسو هنې اوتیرې دتوپ په تختې بد ل شوی دی اود پاکستان‌په‌خاوره کې دپوځې روزنې څه دپاسه سل‌اردو ګاوې دامریکایي، پاکستاني ،چینایي ،مصري او نورو لار ښوونکو تر نظـر لاندې جوړې شوې چې پـه هغو کې هر کال په زرګو نو انقلابي ضد باندیتان روزل کیږي، سمبالیږي اووسله‌وال کیږي او وروسته دورانۍ‌لپاره زموږ انقلابي هیواد ته صادر یږي .

دایران په خاوره کې او دغه راز دچین د سینکیا نګ پـه ایالت کې دافغاني انقلاب ضد جنایتکارو باندونو دروزنې او سمبالتیا کمپونه شته .

دافغا نستان دانقلاب دښمنان یعنې امپریا لیزم، هژمونیزم‌او دسیمې ارتجاع دخپلو ناولو هیلو دتطبیق لپاره دافغا ـ نستان له انقلاب ضدباندو ـ ونو څخه ناوړه‌استفاده کوي. دهغوخائینو اومزدورو باندونو دافغاني دو دونو ، شئو نو، پت، غرور، او ویاړپر ضـد ځانونه دهغوی په واك کـې ورکړې او هغه کوي چې خپل وګرنی‌ضد، ا سلا مي ضـد عملونه داسلام او آزادۍ تـر دروغجنو نومونو لاندې پټ کړي هیڅ ادعا نشي کولای له دې ډیره بې شرمه وي .

چې ګنې دافغا نستان‌انقلا بي‌ضد باندونه‌داسلام‌او آزادۍ په اصطلاح دفاع لپاره. دآزادۍ اودمسلمانو خلکو له دښمنانو څخه وسله تر لاسه کـوي. یوا ځـې او یوا ځـې په افغا نستان کې دثورانقلاب زموږ په هیواد کې دملـي آزادۍ او خپلواکې رښتینې لاره پرانستله او زموږخلکو ته یې دلومړي ځل له پـاره امکان ورکړ چې خپل برخلیك په خپل لا س کې وا خلـي او دطفیلي استثمار ګر اوستم ګر دیو مفت خور لړه کـې فرمان وړونکې نه‌وي دانقلاب دکلونو په‌اوږدوکې دجوماتونو او عبادت ځایونو په جوړ لو او له روحانیونو او مذهبـي موسسو سره په مرستو کې‌د انقلابي دولت دمرستو اندازه چې اته سوه اویو پنځوس ملیونه افغانیو ته رسیږي د تیرو ارتجاعي رژیمونو دوا ـ کمنې له ټولې پنځوس کلنـې دورې څخه زیاته ده .

زموږ په هیواد کې داسلام دسپیڅلي دین‌درناوي ، ساتنه او رعایت کیږي .

موږ وسله وال انقلاب‌ضد کسان دخپل هیواد پر خلاف په جګړو کې دامپریالیزم‌جنګي مزدوران بولو په دې تحمیلي جګړه‌کې باندیتان اودانقلابي ضدجنایتکارومزدورانو مشران یواځې او یواځې زموږ دهیواد په کورنیو چارو کې دامپریا ـ لیزم دلاس وهنې وسیلې دي هغوی دافغان وژلو ته افغـان اړباسي دافغانانو دښمنان له توطیې ډك اوداسي ر ذ یلانه پلان لري چې زیات افغا نان ووژل شي چې زمو نږ هیواد ټو ټې ټوټې کړي. د افغـان خلکو سو له ییز ژوند اوکار ګډوډ کړي .

د ارتجاع او غدار امپریا ـ لیزم له پاره فرار یـان او د انقلاب ضد با ندو نه هـغـه زیرمه ځواك دی چې غواړي‌له هغه څخه په سیمه کې‌دآزادۍ غو ښتو نکو ځوا کو نو اود سو لې او تر قې د ځواکونو د ځپلو په خا طر کار واخلي.

د ضیاء الحق په امپر یا ـ لیزم پوري تړ لي او پو ځـي رژیم د افغا نستان له انقلاب ضد باندونو څخه د پاکستان دخلکو د دمو کرا تیکو غور ـ ځنګو نو اود قبا یلـو تر منځ د بې اتفا قۍ پیـدا کو لو او د خپل شخصـي قدرت د ټینګښت او د پوځی دیکتا توری د پا یښت پـه خا طر استفاده کوي همـدا اوس په ایران کې فرار یانوله عراق سره دجګړې جبهو ته لیږي او د انقلا بي ضـد با نډو نو په واسطه د ایراني تر قي غو ښتو نکو او هیواد پا لو ځوا کو نو ځپلو تـه سازمان ور کوي دغه ټول د افغاني شرف، پت، حیثیت‌او ننګ خلاف دي چې دافغا ـ نستان د انقلاب ضد کسان یې دخپلو بادارانو په لار ـ ښوونه سرته رسوي دانقلاب ضد کسان زموږ له سپیڅلو پولواخوا رنځ اووینې تو یول منځته راوړي او زموږ دهیواد پر خلکو با ندې وژنـه او وراني تحمیلوي .

زموږ دهیواد دښمنـان انقلابي ضد باندونه د ملکـي بیګناه کسا نو په وژنې لاس پورې کوي ماشومان ، ښځـې زاړه‌کسان ، ښوو نـکـې روحا نیون له منځـه وړي ښوونځي ،جوماتونه‌د عبا دت ځایونه او رو غتو نو نـه، سوځوي ا و ورانوي یـې درمنتونو کروندو ته اوراچوي په سیمو کې پر خلکو با ندې دول دول اقتصادي فشا رونه تحمیلوي کاریزونه او د اوبو لګولو سیستمونه ورانوي لارې پلونه او مخابراتي‌سیستمونه ورانوي ارتجاعي او افغاني ضد منحط فر هنګ خپروي دخلکو په پت او حیثیت تیري کوي ښځې اجباري نکاح تـه اړباسي دځوانو نجونو پـه بې‌رحمانه تښتولو لاس پورې کوي اوان هغوی پـ امکـان پیدا کوي د بزګرانو جیبو نه دجریمې اونورو په نو مو نـو سره تشوي اولوټوي یې .

سوله غوښتونکي خلـك وژني اوپه بیرحـما نه او وحشیانه توګه یې شکنجه‌کوي دامپریالیزم دغه مز دورانـو دامپریالیزم په‌وینو لړ لـې تاریخ کې د افغانانو پرخلاف له ناتار څخه ډکه ځانګړې پاڼه پرانیستـې ده داده د افغانستان د انقلاب ضدکسانو رښتینې توره څیره چـې‌د اسلام ددفاع لاپې کوي .

د انقلاب ضد کسا نـود ورانکارو فعالیتونو په نتیجه کې لس ګونو ملیارده افغاني دهیواد اقتصاد یعنې بیت‌المال یادخلکو عامه شتمنې ته‌زیان رسیدلی دی دغه شو کماران لارې وهونکي او سرې‌وژونکي دخلکو شتمنې لو ټوي او له هیواد څخه یې باسي ز موږ دخلکو دښمنان امپر یا لیز م په‌سرکې دامریکا امپریالیزم، دچین هژمونیزم او دسیمې ارتجاع په هیواد کې دانقلابي واکمنې د راپرزولو په ارتجاع او امپریالیزم پورې د تړ لې رژیم د ټینګولو او دسیمـې دخلکو او دشوروي اتحاد پر خلاف دتیرې په‌اډې باندې د افغانستان بدلولو او انزموږ دلرغونې او ویاړلې پلرنۍ‌وطن ټوټې‌ټوټې کولو په بـاب له خپلو تیرې کوونکو پلانونو څخه لاس نه‌دی اخیستـی د امریکا دامپریالیزم او د چین دهژمونیزم له خوا دپاکستان دپوځي ظرفیت زیاتیدونکـي پیاوړتیا چې تیري کوونکـې هدفونه لري دسیمې دخلکو د سولې او امنیت کارله خطر سره مخامخ کوي .

زموږ دهیواد په مقدسـه خاوره باندې د پاکستان د پوځي رژیم پر له پسې تیري او لمسونې د دې واقعیـت ښکارندوی دی د ایران‌مرتجع واکمنې‌ټولنې هم زموږ دپا کې خاورې پر خلاف خطر نا کې اوله ماجراډکې طر حې‌وړاندې کوي دغه حالت موږ افغانانو ته دزغملو وړندې اوله همدې امله دې چې د افغانستـا ن دموکراتیك جمهوریت دافغا ـ نستان دخلك دموکراتیك‌ګوند په مشرۍ دملي مسوولیت په احساس‌سره‌دهیواددخپلوا کۍ، ملي واکمنې،ځمکنۍ بشپړ تیا ساتنې په خاطر دخلکو پـه وړاندې دمکلفیت په احساس سره د هیواد د خپلواکې ملي واکمنې او دځمکنۍ بشپړتیا په خاطر د انقلاب ضد کسانو پرخلاف دمبارزې سختوالـی داردو ، څارندوي او ددولتـي اطلاعاتو د خدمتونو په ګډون دافغانستان دد موکراتیـك جمهوریت دوسله‌وا ل پو ځ، دانقلاب ددفاع دډلو ،دقومي جزوتامونو،سرحدي ملیشه‌وو، دځانې دفاع‌دډلو ، دملکي‌دفاع ډلو ، دټو لنیزنظم دبریګادانو اودانقلاب د سپاهیانو په څیر دملکي وسلـه والو ځوا کو نو ټینګښت او پیاوړتیا په‌ورځني دستور کې دی .

دهیواد او انقلاب د فا ع دافغان خاورې دهر رښتینـي بچي ملي او هیوادنۍ دنده ده یواځې دانقلاب او دهـغـه د ارزښتونو په اغیز من د فاع سره کولای شو په ټول هیواد کې سوله او آرامي تا مین کړو دخپلو پلرونو په څیر اود خپلو آزادو او زړورونیکو نو په څیر دهغوی ناوړه پلانونه په اوبوکې لاهو کړو .

د افغانستان واکمنې ا و انقلابي خپلواك دولت د هیواد اودثور انقلا ب د ارزښتونـو دفاع د امنیت او دخلکو د پرګنو د سوله ییز ژوند دکار تامین خپله داسې انقلا بي دندې بولي چې سرتـرې غړیدلی نه شي .

زموږ دوسله وال پوځ ا و ملکي مدافعینو جنګي ځواك‌په داسې سطحه کې دی چې‌ددې وس لري چې دانقلا ب ضد کسانو هر ډول مقاومت لـه منځه یوسي خو ټولو تـه څرګنده ده چې دانقلاب ضد باندونو دژوند ا و فعالیت نسبي وړتیا اساسي سرچینه په هغو هراړخیزو مرستو کې نغښتې ده چې له امپریا لیستي هیوادو دسیمې له ارتجاع اودعر بو له ارتجاع نه‌دعربو له مترقي هیوادو او خلکواود پیکن له هژمونیزم څخه یـې ترلاسه کوي له دې امله د وسله وال پوځ دلیکو دلازیاتې پیاوړتیا ټینګښت او د هیواد او انقلاب ددفاع په کار کـې دخلکو دپرګنو د ګډون دټولو ښو پراختیاورځنۍ‌دستور دی

له‌دې امله دې چې هـر رښتینې هیوادپال باید دهیواد او انقلاب ددفاع په کار کـې خپله لازمه ونډه واخلي پـه اوسنې شیبه کې ډیره پتمنه وطني او ملي دنده د افغا ـ نستان دموکراتیك جمهوریت دا تل وسله وال پوځ له‌لیکـو سره یوځای کیدل د انقـلاب ضد کسانو پوره ځپـل دی . موږ دسراسري ملي ،سو لې دډیرژر ټینګیدو اودوینو توییولو دبندیدو غوښتونکي یو غواړم څرګنده کړم چې د افغانستان دموکراتیك جمهوري د و لت ټولو هغو کسانو ته چې‌دبیلا بیلو عواملو له امله یې هیواد پرینښی دی په یوه ستر ګـه نه‌ګورو زموږ هیواد پال ملي او انساني مسوولیت حکـم کوي چې په غور او مسوولانه چلند سره د انقلاب ضدکسان، غولیدونکي او هغه کسان چې دانقلابي افغانستان پر ضـد دنااعلام شوې جګړې دمشرانو په شیطاني لومه‌کې نښتي‌دي سره بیل کړو د حالاتو عیني څیړنه ددې ښکارندوي ده چې انقلابي ضد جنایت کـار او مزدور مشران او هغه انقلابي ضدارماني‌کسان چې‌په‌اصطلاح امپریالیستي اید یالوژیـك دریځونه لري زیات شمیر نه دي همدغه ځواکونه د انقلاب ضدکسانو اساسي زړی چـې په واقعیت کې له انقلاب نه مخکې هم دملي اودموکراتیك غـو ر ځنګ اپو زیسیو ن «مخالف» وو جوړوي .

له ثور انقلاب نه وروسته دهغو ځواکونو استازو چـې دثور انقلاب په نتیجه کې یې خپل ظالمانه طبقاتي او ناروا

(پنځم‌مخ)

# دخلکو د آگاهانه ارادی یوموټی والی

د څلورم مخ پاتی

امتیازونه او گټی له لاسه ورکړی او له هیواد څخه تښتیدلی دی وطنی ضد او انقلابی ضدناولی زړی یې پیاوړی کړ. او د هغوی په مرسته په خپله هم داشرار و دباندونو په سرکی ودریدل.

دانقلاب ضد کسانو د لیکو زیاتره برخی هغه کسان جوړوی چی دغو لیدنی د زیاتی خبر تیا دنشتوالی ویری او ډار په نتیجه کی له باندونو سره یو ځای شوی دی. د انقلاب او خلکو د دښمنانو دروغو، جبر او ویری اچونی له پولو څخه په پوری غاړه کی ساده مهاجر او فراری کسان په موقتی توگه د انقلاب ضد کسانو اردو گاه ته راکښلی دی.

د انقلاب ضد کسانو او باندونو مشران له هغو فراریانو مهاجرو او کوچیانو څخه چی په زور سره د پاکستان په خاوره کی ساتل شویدی په فشار او ظلم سره پوځی روزنه ورکوی زیات شمیر فراریان او مهاجران د غیر انسانی سختیو له زغملو او د ثور انقلاب په حقایقو باندی له پوهیدو او د انقلاب ضد کسانو دواقعی ماهیت په پیژندلو سره حاضر دی خپل هیواد ته ستانه شی خو پاکستانی پوځی واکمنان امریکایی، چینایی، مصری او د عربو د ارتجاع او نورو سلاکاران او دغه راز د ایران مرتجع او ظالم واکمنان او د انقلاب ضد مشران په غوسی او بی رحمی سره د هغوی د راستنیدو خند کیږی.

موږ ددغو هیواد والو د بر خلیك په وړاندی نشو کولای بی توپیره پاتی شو او له ټولو امکاناتو څخه به کار واخلو چی د هغوی دبیرته راستنیدو شرایط برابر کړو پدی برخه کی زمونږ چلند روښانه دی.

په څرگنده توگه هغه کسان چی غولیدلی دی او د حقایقو له پوهیدو وروسته دانقلابی نظام غیږی ته پناه راوړی بخښل کیږی.

دانقلابی شورادرئیسه هیأت دبخښنی فرمان تر اوسه نافذ دی. د انقلاب د جزاتوره د هغه چاپه سر باندی را کښل کیږی چی په آگاهانه توگه یی هیواد ته دخیانت‌لاره‌غوره کړی اوپه وسلهواله توگه د خلکو او د هیواد دخلکو پرخلاف په‌جنایت لاس پوری کوی موږ د غوسی او وسلی په‌عملونو لاس‌نه‌پوری کاوه او نه یی پوری کوو،

که دانقلاب دښمنانو زموږ دخلکو پر خلاف دد ښمنی ډك اووحشیانه‌یرغونه‌نه‌کولای. موږ دایدیا لوژیکی معتقدا تو او دطبقاتی سازمان او مسلکی اړیکو له په پام کی نیو لو پرته دزرگونو تنو سیاسی بندیانو په خوشی کولو سره دانقلاب دانسان دوستی ژور ماهیت ثابت کړ.

**محترمو استازیو!**

غواړم چی په دی ځای کی د افغانستان دخلك دموکراتیك گوند دافغانستان دموکراتیك جمهوری دولت‌او د افغانستان دټولو خلکو په وړاندی د طرح شوی ملی تاریخی بنسټیزی ستری او حیاتی مسئلی په باره کی خبری وکړم او هغه دهیواد په پولو کی دټینگی او داوامنی پولی جوړول دی.

په اوسنیو شرایطو کی د ارتجاع او امپریالیزم او هژمونیزم د لمسونو اولاس‌وهنو او تیریو دپراختیا او له بهر څخه دوسله والو انقلاب ضد کسانو دنفوذ له امله دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت دامنیت تامین زموږ ستر او اساسی دنده ده. د افغانستان ددموکراتیك‌جمهوریت ددولتی قدرت او دهیواد دملی واکمنی دلوړو گټو پر بنسټ دانقلاب گټی او د هیواد د لویشت لویشت خاوری دفاع او زموږ د هیواد خاوری ته له بهر څخه‌دانقلاب ضد وسله‌والو باندونو دصادریدو دبندولو ضرورت، دپاکستان او ایران له خاوری څخه دانقلاب ضد باندونوته دوسلو او مهماتو دلیږلو مخنیوی او له‌پاکستان او ایران سره دافغانستان د دموکراتیك جمهوریت دپولو اغیز منه ساتنه او د فاع زموږ داوسنیو دندو په‌سرکی دی.

اتل وسله وال پوځ او د پښتنو پټمن غیرتی، زړور قبایل چی د تاریخ په اوږدو کی یی د خپل پت او ناموس په څیر په ختیځه او جنوبی برخه کی د استعمار گرانو او اشغالگرانو پر ضد دهیواد د پولو دفاع کړیده د پولو د دفاع ستر مسوولیت د اوسنی شیبی د یوی ملی، تاریخی، غاړه نه غړوونکی او څرگندی وجیبی په توگه په غاړه لری، لکه څرنگه‌چی مو اعلام کړی ددغه تصمیم په سر ته رسولو سره د قبایلو تاریخی، ملی، او عنعنوی گټی د افغانستان له دموکراتیك جمهوری دولت سره د هغوی د همکاری او وفا داری د وقفو لو له په‌پام کی نیو لو سره په پام کی نیول کیږی، دغه راز په ټینگه اعلا موو چی ددغه ستر تصمیم په ارتباط د قبایلو په عنعنوی چارو، دود او رواجونو کی د لاسو هنی او تیری حق هیچا ته نه ورکول کیږی او اوسنی قبایلی، د سودا گری، اقتصادی، فرهنگی او خپلوی معمولی دودیزی اړیکی او دغه راز د کوچیانو او په هغو کی د سیمه ییزو اوسیدونکو دتگ راتگ لاری به وساتلی شی دغه تصمیم به دغه راز د قبایلو د ژوند د ښه والی له پاره له پراخو اقتصادی ټولنیزو او فرهنگی‌اقداماتو او تد بیرونو او د سیمو د ودی د سطحی له لوړ تیاسره یو ځای وی، د گوندی او دولتی ارگانونو دنده ده چی زموږ د گوند او انقلابی حکومت سیاست ته په اصولی او پر له پسی توگه تحقق ورکړی، د افغانستان دموکراتیك جمهوری دولت دهیواد د قومونو قبایلو او ملیتونو د نیکمرغی او سوکالی دایمی څارنه او پاملرنه د خپلی پر له پسی پاملرنی په محراق کی‌دروی خو دا په دی مانا نه دی چی انقلابی واکمنی دی دهغو کسانو په نسبت چی له دغه باور او پاملرنی نه ناوړه استفاده وکړی له اندازی نه زیات نرمچلندوکړی، دقبایلو تر منځ بی اتفاقی اچول، د بیلتون غوښتنی روحیه او د انقلاب، هیواد او خلکو په وړاندی د هغوی ددرولو لپاره هلی ځلی به زموږ له غوڅ او کلك چلند سره مخامخ شی، خو ټول باید پوه شی چی موږ هیڅکله د آزادو قبایلو خلکو او د خپلو پښتنو او بلوڅو ورونو د برخه لیك په باب چی د پاکستان دپوځی ارتجاع د ظلم ستم او بی رحمی تر لغتو لاندی اوسی بی توپیره نشو پاتی کیدای او پدی برخه کی دسولی د اصل، خپلواکی او تر قی پر بنسټ د کلك مسوو لیت احساس کوو.

د ثور انقلاب په بریالیتوب سره زموږ د هیواد بهرنی سیاست د افغانستان د سپیڅلو خلکو د گټو د ځمکی بشپړ تیا د دفاع، انقلابی نړیوال پیوستون، له شوروی اتحاد او ورو سوسیالیستی او مترقی‌هیوادو سره‌دعنعنوی ورور گلو یز او دوستانه اړیکو دودی او پراختیا، دناپیلتوب د غور ځنگ هد فو نو ته د وفاداری، دملی خپلوا کی بخښوونکو غورځنگونو ددفاع داستعمار، امپر یالیزم، هژمونیزم، نژادپالنی، صهیونیزم، اپارتاید او استثمار پر خلاف د مبارزی، د ملگرو ملتو دساز مان د منشور اود بشر د حقوقو د اعلامیی پلا انحرافه او کلك رعایت ته د درناوی پر اساس طرحه شویدی.

دثور انقلاب د نړیوال انقلابی بهیر نه بیلید و نکی برخه ده اود خپلو هدفونو د تحقق په خاطر نړیوالو مسا عدو شرایطو یعنی په نړی او سیمه کی د دوام داری سولی ټینگښت ته اړ تیا لری، دافغانستان دمو کرا تیك جمهوریت دسولی د دفاع او ټینگښت په لا ره کی لا زم اقدا مات په پر له پسی توگه سر ته رسوی موږ د شوروی اتحاد دسولی له‌نوښتونو سره چی د شوروی اتحاد په گوندی او دو لتی رسمی سندونو اود شوروی اتحاد د کمو نست گو ند د مر کز ی کمیتی د عمومی منشی ملگری میخا ئیل گربا چف په ورو ستیو ویناوو او مرکو کی منعکس شوی اود سولی‌سا تنی اود وسلو د سیالیو مخنیوی، د نړیوا لو کړ کیچنو کمښت او د سو له ییز گډ ژوند د اصولوپیروی ته‌متوجه دی پوره ملاتړ کوو.

په سیاسی، اقتصا دی، فرهنگی، تخنیکی بیلا بیلو برخو او نورو برخو کی له شوروی اتحاد سره د متقا بلی او عنعنوی همکاری اودوستانه او ورور ولی اړیکو ټینگښت پر مختیا او پراختیا زموږ د هیواد د ملی خپلواکی، دملی اقتصاد د پراختیا ټولنیز پر مختگ اود نړیوال دریځ د ټینگښت ضامن بلل کیږی او ښه گاونډیتوب پرمختیا او بشپړ تیا مومی.

داکتوبر ستر سوسیالیستی انقلاب د افغانستان دخلکو د استعماری ضد او خپلواکی غوښتونکو مبارزوپه بریالیتوب کی‌ستر رول‌لوبولی دی، شوروی خوان جمهوریت په‌خپلو لومړ یو اعلامیو کی د ښکیلاك له واکمنی څخه د خلاصون په خاطر مبارزه‌کی دختیځ له خلکو سره د مرستی او کومك په مقصد خپل تیاری اعلام کړ.

شوروی اتحاد لومړی هیواد و چی د افغانستان خپلواکی یی په رسمیت و پیژند له او افغانستان هم لومړی هیواد و چی د شوروی روسیی خوان جمهوریت یی په رسمیت وپیژاند د شوروی روسیی سیاسی، مادی او معنوی ملاتړ د افغانستان د خپلواکی په ټینگښت کی‌ستر رول ولوباوه.

دافغان ـ شوروی داقتصادی فرهنگی او پوځی پراخو اړیکو او منا سبا تو دبنسټ دافغانستان د خلکو دستر دوست ولاد یمیر ایلیچ لنین په وسیله کیښو دل شو او دا پداسی حال کی وچی د شوروی روسیی خوان‌دولت پخپله له اقتصادی سخت حالت کور نی جگړی اود امپریا لیزم له لاسو هنو سره مخامخ و.

دافغان ـ شوروی د خلل نه منونکی دوستی، پر بنسټ د اقتصادی سترو پروژو تاسیسات لکه د بریښنا انرژی دتولیداتو دموسسو، فلز کاری، کیمیاوی صنایعو، دکانو دراایستنی سپکو صنایعو، کور جوړولو دماشین آلاتو دترمیم دموټرونو لویو لارو، هوایی ډگرونو اود کرنی د سترو فار مو نو او نور په افغانستا ن کی د شوروی اتحاد په مرسته جوړ شویدی، زموږ په هیواد کی ۹۹ پروژی د شوروی اتحاد په همکاری فعالی دی او نوری ۹۰ پروژی تر سروی او جوړولو لاندی دی. په هغو موسسو کی‌چی د شوروی اتحاد په مرسته جوړی شوی دی دهیواد د ټولو صنعتی محصو لاتو په سلو کی شپیته تولیدیږی.

افغانستان ته د شوروی اتحاد اقتصادی او تخنیکی‌مرستو د افغانستان د ځوانو کار گرانو د طبقی په وده کی ستر رول لوبولی دی.

دافغان ـ شوروی د همکاری په پروژو کی په وروستیودیرشو کالونو کی پنځه او یا زره تنه پیاوړی کار گران روزل شوی‌په زرگونو تنه‌انجنیران، تخنیکران داکتران، ښوونکی او استا دان د شوروی اتحاد په علمی او فرهنگی موسسو کی روز ل شویدی.

د ثور انقلاب له بریا لیتوب و روسته دافغان ـ شو روی اړیکی دوررور گلوی اوملگر تیا داړیکو لوړو سطحو ته او رسی شوی چی په منطقه تو گه شتمنی او بشپړ تیا مو می د ۱۳۵۷ کال د قوس په خوارلسمه نیټه د افغانستان د د مو کرا تیك جمهوریت او د شوروی سو سیالیستی جمهوریتونو اتحاد ترمنځ د دوستی ښه گاونډ یتوب او همکا ری تړون دافغان ـ شوروی د دوستی په تړون کی روښانه پایه جوړوی.

شوروی اتحـاد د دواړو هیوادو تر منځ د عنعنوی دوستی داړیکو په اوږدو کی‌په پرله پسی توگه د ژوند په ډیرو مهمو او خطر ناکو شیبو کی د آزادی ملی خپلوا کی او زموږ د هیواد ځمکنی بشپړ تیا ددفا ع په خاطر زموږ له‌خلکو سره بی غرضه او ستری حیاتی مرستی کړیدی.

شوروی اتحاد هیڅ راز سیا سی امتیاز له افغانستان څخه ندی غو ښتی او هیڅ وخت یی دافغانستان پرخلکو او حکومت باندی سیاسی شرایط ندی تحمیل کړی او د افغانستان د خلکو په وړاندی یی دښه گاونډ یتوب همکاری او دوستی، لنینی سیاست تعقیب کړیدی او تل یی مینه ښودلی چی افغانستان یو آزاد خپلواك مترقی اوسمسور هیواد وی.

اجازه را کړی یو ځل بیا دافغانستان د خلکو په نما ـ یندگی له افغانستان سره د شوروی اتحاد انتر نا سیو ـ نالیستی پر وخت پوځی مر ـ ستی له امله چی دافغانستان ددمو کراتیك جمهو ریت غو ـ ښتنی ته‌یی لبیك و وایه او په ډیرو سختو حساسو تاریخی شیبو کی یی د افغا نستان له خلکو سره وکړه د زړه له کومی کور ودانی او مننه‌څر ـ گنده کړو دوورو ولی د غی مرستی دافغانستان دټوټی توتی کولو او زموږ د ټو لنی د تباهی په‌باب د ار تجاع او امپریا لیزم ناولی نقشی شنډی کړی.

**محترمو استازو!**

دانقلابی افغانستان‌دښمنان هلی ځلی کوی د شو روی اتحاد د وروروولی د پو ځی مرستو ماهیت له غرض نه په ډك ډول تحریف کړی په اصطلاح دافغانستان‌مسا لی ته لمن وهل چی دامپریا لیزم سیمی د ار تجاع اود پیکن دهژمو نیزم له خوا په فتنه اچوونکی توگه طرحه کیږی، زموږ په کورنیو چارو کی له بی شرمی لاسو هنی اود نړ ـ یوالو حقوقو او موازینو له نقض کولو پر ته بل څه نه د ی.

په افغانستان کی به د شوروی اتحاد پو ځی محدود قطعات تر هغه وخته پوری چی دافغانستان ددمو کراتیك جمهو ریت پر ضد دامپریا ـ لیستی او ار تجاعی تیری‌خطر موجو دوی، زموږ په هیواد کی پاتی شی، کله‌چی‌دافغا ـ نستان ددموکراتیك جمهوریت پرضد بهرنی لاسو هنی او تیری پای‌ته ورسیږی او د هغه دنه تکرار یدو په لار کی‌معتبر نړیوال تضمین تر لاسه شی دغه قطعات به د دواړو خواوو دافغانستا ن د دمو کرا تیك جمهو ریت او شوروی اتحاد په موا فقه خپل ستر سوله دوست هیواد ته ستانه شی.

په افغانستان کی د شور ـ وی اتحاد پوځی محدودو قطعاتو شته والی نورو ته هیڅ ډول خطر نه دی متوجه کړی او په دواړو ورو نو هیوادونو پوری‌مربوط کاردی.

افغانستان آزاد، سوله ـ غوښتونکی اونابیللی، خپلواك اودملی واکمنی لرونکی‌هیواد دی چی دنړی له هر هیوادسره داړیکو په ټینگښت کی‌بشپړه آزادی لری او له هر هیواد څخه چی غوښتنی‌یی وی، کولای شی دخپلو ملی گټو اوښیگڼو ددفاع په خاطرمرسته وغواړی، دافغانستان دبهرنیو اړیکود محدودیت او دهغه ددوستانو او دښمنانو د ټاکلو په لاره کی هغه هلی ځلی چی‌د امپریالیزم له خوا مطرح‌کیږی زموږ دهیواد په کورنیو چارو کی‌د په‌ډاگه لاس و هنی او د افغانستان په ملی واکمنی باندی دسترگی پټو لو څر ـ گندوی دی.

موږ ددغو هلو ځلو پر خلاف چی استعماری او دنوی استعمار هدفونه تعقیبوی په غوڅه توگه مبارزه کوو.

موږ دامریکا دمتحده ایالاتو دمرکزی قوماندانی، سنتکوم، جوړیدل چی دآسیا جنوب او جنوب لویدیځو، دخلیج د سیمی، دهند دسمندر، منځنی ختیځ اودافریقا دښکر هیواد ـ ونو، خپلواکی، ملی واکمنی او ځمکنی بشپړ تیا پرخلا ف یی ربښتینی او کلك خطر پیدا کړی دی او دامریکا دامپریا ـ لیزم دلاسوهنی او تیری‌کو ـ ونکی سیا ست له ښو ښکارنو څخه دی اودهغه دپوځی شته ـ والی سختوالی چی دهغه هیواد له‌غاړو څخه په‌زر گو نو کیلو متره لری دی په کلکه غندو.

دامریکا دامپریا لیزم‌دسیمی دډژاندارم په‌توگه دپاکستان‌له لیونتوب نه په ډکه توگه‌وسله والوکولودهغه دگاونډیوهیوادو په تیره بیا دافغانستان د دمو کرا تیك جمهور یت اود هند دسترااو سوله خو ـ ښوونکی هیواد امنیت ته ربښتینی خطر متوجه کړیدی.

موږ دایران او عراق‌دبی‌ځایه جگړی چی امپریا لیزم له هغه څخه گټه اخلي دپای‌ته رسیدو پلویان یو.

دمنځنی ختیځ دلانجی حل چی دهغه په‌مرکز کی‌دفلسطین دجوړیدلو او مسلمانو خلکو روا حقوق پراته دی داسرا ـ ئیلی صهیو نستانو او دهغه دامپر یالیستی پلو یانو داشغا ـ لگرانه او پراختیا غو ښتنی‌د تیریو او نقشو دمهار کولو له نیول شویو ځمکوڅخه داسرا ـ ئیلی عسکرو دوتلو، دخلکود ملی واکمنی دحق دپه رسمیت پیژندلو او په فلسطینی خاوره کی دفلسطین دخپلواك دولت دجوړیدو له لاری امکان لری، موږ دصهیونیزم، امپریا لیزم او دعربو دارتجاع پر خلاف مبارزه کی دفلسطینی ورونو خلکو او دعربو ورونو خلکو دروادعیو ملاتړ کوو موږ د انقلابی نیکاراگوا پر خلاف امریکا دامپر یا لیزم تیری کو ـ ونکی پلان په کرکی او نفرت سره غندو او دنیکارا گوا له انقلابی خلکو سره یو ځل بیا خپل پیوستون اعلاموو، دافغا ـ نستان ددموکراتیك جمهوریت حکومت دافغانستان دشاو خوا کړکیچنو حالاتو د حل لپاره چی دارتجا ع، هژمونیزم او امپریا لیزم دتیری کوو نکواو لاس وهنی دسیا ستو نو مستقیمه نتیجه ده ټاکلی، واقع بینانه، عملی اود ټولو لپاره منلو وړ او انعطاف منونکی پیشنهادونه اونو ښتو نه وړاندی کړیدی.

دافغانستان ددمو کراتیك جمهوریت حکومت د ۱۹۸۰ کال دمی دخوارلسمی اود ۱۹۸۱ کال داگست دخلیرو ـ یشتمی نیټی پیشنهادونه ددی حقیقت ښکارندوی دی چی دغه پیشنهادونه دپاکستان او ایران دټولو ورونو خلکو دگټو څرگندوی دی، موږ یو ځل بیا دغه اصولی سیاست ته په خلل نه منونکی وفاداری سره له پاکستان او ایران سره د اختلاف وړ اوناحلو مسالوحل او فصل لپاره خپل تیاری اعلاموو، له بده مرغه دوا ـ شنگتن په سرکی دریگن د اداری او دیو شمیر نورو ار ـ تجاعی او امپریا لیستی‌هیوادو تر فشار لاندی دپاکستان پو ـ ځی رژیم او دغه راز دایران واکمنی ظالمی او مرتجع ټولنی ددغو مسالو دحل په برخه کی دزړه له کومی‌تمایل نه لری، موږ پدی لاره کی په ښه نیت او په صادقانه توگه عملی گامونه پورته کړیدی او له‌خپلوگا ونډیو څخه‌هم ورته عمل‌ته سترگی په‌لار یو.

موږ یوځل بیا اعلاموو چی د اختلاف وړ مسالی د مستقیمو خبرو له لاری په عادلانه په سوله ییزه اودمو ـ کراتیکه توگه حل کیدای شی تاریخی فرهنگی او عنعنوی پخوانی اړیکی افغان خلکو ته دایران او پاکستان له ورونو خلکوسره پیوند ورکوی، دپاکستان پوځی رژیم او د ایران مرتجع واکمنی ټولنی په دغو تاریخی واقعیتو نو باندی په‌ستر گو پټولو سره ددغو هیوادو دخلکو د ارادی پرخلاف زموږ دخلکو په‌وړاندی ددښمنی‌لاره غوره کړیده.

دافغانستان نړیوال دریځ له بل هر وخت څخه نن‌ټینگ او باوری دی د افغا نستان دشوروی اتحاد او دنورو سو ـ سیالستی هیوادو، دنړیوالی کارگری طبقی دنړی په ټو لو سیمو کی دملی خپلواکی غوښتونکو غورځنگونو دمترقی رژیمونو او مترقی سیا سی گوندونو او سازمانونو ترمنځ انتر نا سیو نالستی خلل نه‌منونکی اړیکی په ډاډ منه تو گه پرا ختیا کوی.

نن افغانستان دنړی له اتیا هیوادو سره دیپلو ماتیك اړیکی لری، دافغانستان دخلك دموکراتیك گوند له ۱۳۵ ورونو کارگری، انقلابی او دمو کراتیکو گوندونو اودملی آزادی غوښتونکو غورځنگو نو سره اړیکی لری.

دغه راز له څرنگه چی تاسو خبر یاست د سولی دنړیوالی شورا په نوښت دثوردمیاشتی لومړی اوونی‌په ۱۴۴ هیوادو کی د سولی د ساز مانونو لخوا د افغانستان له خلکو سره د پیوستون د اوونی په‌توگه نمانځل کیږ ی انقلابی افغانستان، دافغانستان دانقلاب او خلکو له رواداعیی سره دنړی دمترقی ځواکونو، گوندونو او سازمانونو له مبارز پیو ستون څخه یو ځل بیا منن‌ه‌کوی.

دافغانستان دخلك دمو ـ کراتیك گوند او د افغانستان ددموکراتیك جمهوریت‌حکومت دهغه خطرله امله‌ژورهاندیښنه کوی چی سوله، دانسا نا نو ژوند اوبشری تمدن‌تهدیدوی، دجگړی خطر د امپریالیزم په سرکی دامریکا دمتحده ایالاتو دامپریالیزم دتیری کوونکی سیاست په نتیجه کی زیات شویدی، دپوځی لوړتیا د تر لاسه کولو، داتومی وسلو د سیالیو په سختوالی او فضا ته دهغو دراکښلو په نړیوال ډگرکی له دولتی تروریزم‌څخه داستفادی، دنورو په کورنیو چارو کی د لاسوهنی، دسو ـ سیالیستی هیوادو اودنړیوالو کارگری طبقی او دملی آزادی غوښتونکو غور ځنگو نو پرخلاف د صلیبی جگړواعلام له پخوا څخه زیات دنړیوالو حالاتو سختوالی زیاتوی.

**دلویی جرگی محتر مو استازیو!**

**ورونو!**

دلته موږ او تاسی ټول له هیواد سره تودی مینی، دوطنی سراسری سولی تامین گډ سرنوشت او د اوسنی حالت له غوښتنوسره سم دهیواد دنسلونو راتلونکی سره راغونډه‌کړی یو، موږبه دتاریخ په وړاندی حساب ورکوونکی یو، اوسنی لو یه جرگه باید زموږ د هیواد د انقلابی معاصر ځپاند تاریخ په زړه‌کی ځای ونیسی، د اوسنی لویی جرگی نوم باید دسولی، آزادی، ترقی له نامه او د افغانانو د هیواد له ښکلی او ویاړلی نا مه سره هم ردیفه وی.

**پریږدی و روستی نسلو نه په‌سر لوړی او په وجدانی، آرامتیا سره او سنی لویه جرگه یاده کړی.**

**پریږدی د هیواد دزړ ورو انقلابی ځوانانو روح چی د شهیدانو په وینو سره غونډی اوپه‌نوم ور کو وینو سرو هدیرو کی ویده دی ز مو ږ په ستر او تا ریخی تصمیمو نو سره ښاد شی.**

**ویاړ اوبت دی وی د افغان په آزادو خلکو.**

**ژوندی دی‌وی زموږ خپلواك او انقلا بی هیواد گران افغانستان.**

**ویاړ دیوی د افغانستان دپټمنو اوزیار کښو خلکو په لویی جرگی!**

**ژوندی دی وی هیواد، خلك او انقلاب!**

# دنومیالی هیواد په‌نامه

ددوهم مخ پاتی

شورا، د افغانستان ددمو ـ کراتیك جمهوریت د عالمانو او روحانیونو د عالی شورا او نوروټولنیزو سازمانونو رئیسان او غړی یی کی دی. د باور لیك کمیسیون د استازو کمی او کیفی ترکیب او دغه راز په هیواد کی دنافذو قوانینو ا و اسلامی شریعت له مخی او د هریو استازی د شرعی وثیقی له مخی دهغوی قانونی و اك ترڅیړنی لاندی نیول شو ی دهغوی دباور په تایید سره هیله کوی چی دلویی جرگی له خوا تصویب شی.

وروسته ملگری ببرك کارمل دهغی عا لمانه او له محتواډکه ویناپه ترخ کی چی په هره برخه‌کی دخلکودواکمنو او مخورو استازیولخوا دولولوپه څرگندولو او په پرله پسی چکچکو سره بدرگه کیده وکړه.

دببرك کارمل د وینا په‌پای کی دلویی جرگی استازی ودریدل اوپه انقلابی شعارونو سره یی د افغانی له ولولوډکو احساساتو په څرگندولو او په پرله پسی چکچکو سره دخپل دروندااو گران مشر د وینا هرکلی وکړ او هغه‌یی په بشپړه توگه تاییده کړه.

په دی وخت‌کی استازیو پداسی حال کی‌چی د خپل گران مشر دهرکلی لپاره دریدلی‌وو شعا رونه ورکول ! ژوندی دی وی دافغانستان دروند مشر ببرك کارمل، موږ تروروستی سلگی پوری‌دخپل انقلاب دفاع او ملاتړ کوو، شوروی اتحاد دافغانستا ن دخلکو پخوانی دوست دی او موږدهغوی دپه وخت مرستو ملاتړ کوو، مړه دی وی‌ارتجاع او امپریالیزم په سر کی د امریکا جنایتکار امپریالیزم.

وروسته په لویه جرگه کی دپکتیا د خلکو ټاکل شو ی استازی حاجی محمد ځمکنی دلویی جرگی د اساسی وینا د تایید په ترڅ‌کی دیوی وینا په ترڅ کی وویل:

د افغانستان دخلك دمو ـ کراتیك گوند او د افغانستان ددموکراتیك جمهوری د ولت دخلکو او هیواد دگټو په‌خاطر پداسی شرایطو کی چی د هیواد ټول زیارکښ خلك‌خپلی آرزوگانی، دودونه، مقدسات او ارمانونه منعکسوی په ربښتینولی او میړا نی سره د نوی ټولنی د جوړولو په لار کی هڅه او هاند کوی او په دی لار کی انقلابی گامونه اخیستل شویدی‌زموږ خلکوپه خو ښی او د ملی اتڼونو، مارشونو په کولو سره په‌آرامه او دموکراتیکه فضا کی له انقلابی بدلونونو سره خپله ننگه او ملاتړ څرگند کړ.

زموږ دگران مشر ببرك کارمل په مشری زموږ په واحد هیواد کی د اوسید ونکو ملیتونو، قومونو او قبایلو ددودونو، رواجونو او د هغوی دگټو، مقد ساتو او د هیواد دنیکمرغه ټولنی د جوړولو په لارکی دهغوی د اوسنی ا و مخکینی رول له په پام کی نیولو سره دبرابرو حقوقو د تامین او دیووالی د ټینگښت په خاطر د هغو تر منځ همیشنی هلی‌ځلی پیل‌شویدی. ده زیاته کړه موږ د ا. خ. د. گ اودانقلابی دولت سیاست چی‌د سولی‌او امنیت دتامین‌په‌لاره‌کی دسوکالی ټولنی د جوړولو خوانه متوجه دی غوڅ ملاتړ کوو او دنا اعلام شوی جگړی دختمولو اودوسله والو سری وژونکو ا و روزل شویو باندونو او د افغانستان‌خاوری ته د وسلو د کاروانونو د راتگ دمخنیوی په لاره کی خپل هر اړخیز ملاتړاعلاموو.

حاجی محمد ځمکنی ز یاته کړه موږ د گوند او انقلا بی دولت کړنلاری ته تحقق ورکول خپله ایمانی، وجدانی او هیواد پاله دنده بولواودغو هدفونو په سرته رسولو کی خپل رسالت سرته رسوو. اود هیواد د پولو په ساتلو کی دپکتیا ولایت د قومونواو قبایلو همکاری او ملا تړ اعلاموو او خپل ځان مکلف گڼم هغه واك چی دپکتیاولایت ولایتی جرگی زموږ د گوندااو انقلابی دولت د کورنی او بهرنی سیاست او دشوراگانو دسترهـ ړادله‌خلکوسره‌ددوستی دتایید او ملاتړ په باب ما ته راکړی دی څرگند کړم.

په پای کی د گران مشر ببرك کارمل دوینا په تا یید خپل هر اړخیز ملاتړ اعلاموم وروسته په لویه جرگه کی دننگرهار و لا یت منتخب استازی کواڅخان د اساسی وینا په تایید خبری وکړی ویی ویل:

له هغو لارو څخه چی کولای شی د نا اعلام شو ی جگړی په پای ته رسیدو اود انقلاب ضد باندونو په خپلو کی اغیزمنه واقع شی له پاکستان او ایران سره دپولو ترل دی.

دننگرهار ولایت په سرحدی سیمو کی اوسیدونکی قومونه او قبایل تیار دی چی خپله دغه ملی او تاریخی وظیفه په میړانه افغانی غرور او هیواد پالنی سره چی تر اوسه یی سرته رسولی لاهم سخته کړی.

باید ډیر ژر زموږ د هیواد پرخلاف د امپر یا لیستی طراحانو د توطیو په وړاندی ټول هیواد پال ځواکونه سره

(شپږم مخ)

# دنوميالـــي هـــيوادپه نامه

(دپنځم مخ پاتي)

يوموټي شي، ځکه د انقلاب ضد بانډونو مشران هغه ځان پلورونکي دي چې د افغانستان دخلکو د تاريخي او د اسلام دسپيڅلي دين ددښمنانو په خدمت کي دي.

ده وويل موږ د ا.خ.د.ګ چې په هغه‌کي زموږ د هيواد رښتينني بچيان راټول شويدي دافغاني ټولني د سياسي مخکښ او انقلابي سر تيري په توګه پيژنو.

دفيوډالي سلطنت‌په‌وړاندي ددغه ګوند اتل والو مبارزو اود ا.خ.د.ګ دمرکزي‌کميټي د عمومي منشي او د ا.د.ج دانقلابي شورا درئيس محترم ببرك كارمل په لارښوونه د ا.خ.د.ګ دمرکزي کميټي په مشرتابه دهغه په وسيله د انقلابي علمي غور څنګ رهبري، دهغه د لارې هدفونه او حقانيت په پوره ډاډ سره ثابت کړل.

ورپسي په لويه جرګه کي دبلخ ولايت منتخب استا زی هلال الدين بدري وينا وکړه وی ويل: موږ دثور انقلاب دنوی پړاو په شرايطو کي وينو چې د محترم ببرك كارمل په مشرۍ د ا.خ.د.ګ اوزموږ دوګرنی دولت د ا.د.ج کورني او بهرنی سياست د افغانستان دټولو خلکو د هيلو او ګټو څرګندوی دی.

زموږ دولايت زيارايستونکي خلك دهغه پوره ملاتړ کوی، زموږ دولايت خلك دسيمه‌ييزو ار ګانونو په ټينګښت او د انقلاب او دهغه دلاسته‌راوړنو په دفاع کې له وسله وال پوځ، د انقلاب د مدافعينو او دځانی دفاع له ډلو سره يو ځای کيږي دخپل کور او ټاټوبي دکروندو او کليو دفاع کوي او په ځان تيريدني او سرښندني سره او د ژوند تر وروستي سلګی پورې به د خپل انقلاب او هيواد د خپل ناموس او پت او دخپل ګوند او دولت د سياست دفاع وکړي.

وطنوالو ورونو اوخويندو راشی په يوه غږوواوايو چې امريکا او د هغه دسيمي انډيوالان دي د افغانانو له هيواد او وطن څخه لاس واخلي موږ دهغي لاری چې زموږ ګوند او وګړني دولت ټاکلي دەملاتړ کووا‌وتعقيبوويي او دګران محترم ببرك كارمل تر مشرۍ لاندې دخپل ګونداو دولت دکورنی او بهرني سياست ملاتړ کوو او دهيوادداو انقلاب دښمنانو ته په‌دعبرت درس اوتاريخي‌ماتي ورکړو اوله خپل ګسران هيواد د افغانستان له دموکراتيك جمهوريت څخه به‌په سيمه کې پر مختللی او نمونه هيواد جوړ کړو.

دغه راز په لويه جرګه‌کي دکونړ ولايت د خلکو استازی عبدالرحمن مومند پخپلو خبرو کی‌وويل: دجرګو جوړول‌زموږ په هيواد کی‌ډيرارزښتنا ك او لرغونی رسم او رواج دی.

نن چې زموږ د پلرونو په ټاټوبي انقلابي افغانستان کې او د تاريخ په دغه حسا سه شيبه کې د افغانستان دخلکو دګران او رښتيني مشرببرك كارمل په نوښت دغه لو يه جرګه جوړيږي داكار ثابتوي چې د ا.خ.د.ګ رهبري‌دخلكو غوره او منل شوي دودونواو رواجونو ته درناوی لري اود دولت د اداری په چارو کی دخلکو غو ښتني او نظر يي په نظر کې نيسي.

زه دکونړ ولايت د خلکو په نمايندګي ددغی لويی جر ګی دجوړيدو له امله چې‌بی‌لەشکه زموږ دهيواد په تاريخ کی يوه ستره او ارزښتناکه‌پيښه ده دګران افغانستان د جرګو هيواد، ټولو ميړنيو خلكو او محترمو استازيو ته مبارکي وايم.

ده زياته کړه له يوی خوا زموږ په ګران هيوادافغانستان کی‌دپرمختګ، سو کالی او ټولنيز عدالت د تامين لپاره په ټول قدرت هڅه او هاند روان دی خو له بلی خوا دټول بشريت ستر دښمن امريکا د هغی انګريزي ا و چينايی انډيوالان او پاکستانی تالی ښتي او دغه راز ايرانی مرتجعين دخپلو ناوړوپلانونو او هدفونو د تطبيق لپاره په مذبوحانه توګه هلی ځلی‌کوی.

پدی باره کی د کونړ ولايت په‌ولايتي جرګه کی پراخی خبری وشوی او دهغی جرګی غړيو دخپلو استازو دانتخاب په ترځ‌کی د ا.د.ج لويی‌جرګی ته دغه پيغام وړاندی کړ چی نورباید زموږ د هيواد پرخلاف ناعلام شوی جګړه پای ته ورسيږي او د افغان له خواد افغان وژنه بنده شی او پدی برخه‌کی به دکونړ و لايت زيار ايستونکي خلك خپلی وجيبی سرته ورسوی ا و پخپله ژمنه کی به صادقوي.

په همدی ترتيب زموږ هر وجدان لرونکي هيوادوال چې دپرمختګ، آرامی، سرلوړی، خپلواکۍ، عزت اودخپلو خلکو له ناموس سره مينه لري او خپل پلرنی هيواد ته صادق اوسی په ايمانداری او پوره صداقت د ا.خ.د.ګ دهيلو د پوره‌تحقق لپاره به‌په خپل‌ټول قوت د خپل دغه وياړلي ګوند ملاتړ وکړی او پدی تر تيب دهيواد د تاريخ پدغه خلانده پړاوکی خپل تاريخي ر سالت په ښه توګه سرته ورسوی.

وروسته په لويه جرګه کی دکابل ولايت دخلکو منتخب استازی عبدالصمد دهقـــان څرګنده کړه:

دلويی جرګی د محترم رئيس او دمحترمو استازيو په اجازه.

زه وياړم چی نن مـــی په دغه ملی‌ستره جر ګه کـــی ګډون کړی دی اود ا فغانستان د خلکو د رښتيني خدمتګار محترم ببرك کارمل له اخلاص نه ډکو خبرو ته مي غوږ ونيو.

محترم ببرك‌كارمل نه‌يواځي نن ورځ بلکی له انقلاب څخه څو کاله مخکی د زيار کښو خلکو دغمخور په توګه‌پيژندل شويدی.

په پارلمان کی هغه خبر ی چې کولی يې اوپه مظاهرو کی يي بيانول زموږ دزړه خبر ی يي کولی زه دغه خاطره په ياد لرم چې وربشينه توره ډوډی يي څرګنه په پارلمان کی د وخت صدراعظم تـــه وړاندی کړه ددغی پيښی‌کيسه تل زموږ دخلکو تر منځ‌کيږي.

دخپل انقلاب جشن موونيو اتي مو وکړه دځمکو په و يش کی موږخپله برخه واخيسته، له خپلو لونګيو څخه مو متر جوړکړ، دراتلونکي په نسبت زموږ هيلی زياتی شـــوی؛ دانقلاب دساتني په خاطر مو خير او خيرات وکړ، د انقلاب په حقيقت باندی پوه شوو او پوهيږو چې ګوند او انقـلاب زموږ دی او په موږ پورې اړه لري اوزموږ لپاره‌کارکوی.

جرګه هغه منلی دوددی‌چی زموږ‌له پلرونو او نيکونوڅخه په ميراث راپاتي دی دلومړی ځل لپاره په رسمي ډول په دولتي قدرت کی دخلکـــو د برخي اخيستني دقا نو ن په توګه د انقلابی دولت له خوا منل شويدی چې زموږدهيواد دتاريخ په اوږدوکی بی ساری اقدام دی اوپه جرات ســـره شويدی، زموږ په کلی‌کی‌هم جرګه فعاله ده موږ خپل‌مربوط مسايل ددغی جرګی او دباوری اوبانفوذه سپين‌ږيرو له لا ری حل او فصل کوو.

ده زياته کړه اوس دجرګی دجوړيدو اوله ګوندی او دولتی اداروسره ددوام داروتماسونو له لاری څخه زموږ د ولايت دبزګرانو، کارګرانو اوزيارايستو نکو تر منځ زيات يووالی او پيوستون شته،موږ دخپل ګوند د غوښتني له‌مخي او ګوند او دولت زمـــوږ د غوښتني له مخی عمل کوی، زموږ دغه پيوستون داستونکني دخای دشورا ګانو د پلار وطني ملي جبهي، دولسوالي اوولايتي شورا ګانو له لاری څخه زيات‌ټينګښت‌موندلی‌دی.

زموږ بانفوذه او بـاوری کسانو به پلار وطني ملي‌جبهه کی‌غړيتو ب حاصل کړ يد ی په‌سرلوړی سره پداسی حال کی چې ددغی لويي جر ګـــی تصميمونه‌.په بشپړه تو ګه برخای بولو، دهغه دپريکړو په تطبيق‌کی په سر، ځان او مال سره چمتو يو، په پـای کی زموږ د غيرتي او حـــق پيژندونکو خلکو له خواد‌خپل نيك او دوست او ملا تـــړ کوونکي ګاونډي يعنی شوروی اتحاد نوم ښه اخلو.

په لويه جرګه کی‌دجوزجان ولايت‌دخلکو منتخب استازی محمد امين وويل: دافغانستان دټولو خلکو له خوا د ثـور انقلاب د بريالیتوب تودمرکلی وشو، ځکه دانقلاب‌بريالیتوب دستمګرانو او ظالمانوواکمني پای ته ورسو له او زيـار ايستونکو ته‌يی دا امکا ن برابر کړچی په يووالی، ورورولي اوپه اسلامي‌ورورولي سره کار وکړی اوپه دولتي فعاليتونو کي برخه واخلي.

دجوزجان خلك، دافغان، شوروی ددوستی په مانا‌ښه پوهيږی، دشوروی اتحاد په مرسته دګاز اوتيلو سترکانونه کشف او ويستـــل يـــی روان دی، موږ د افغانستا ن خلکوته دشوروی اتحـــاد د دوستي ستری بيلګی په هره خواکی وينو او پوهيږو چی دغه مرستی‌يواځي يو دوست خپل دوست ته سرته‌رسوی.

محترمو استازيو!

زه دجوزجان د خلکو پـــه نمايندګی د افغانستان دخلك دموکراتيك ګوند د مرکزی کميتي دعمـــومي منشي او د افغا نستان ددمو کراتيـــك جمهوريت د انقلابي شورا د رئيس محترم ببرك كارمل له وينا سره خپل‌بشپړ ملاتړ څرګندوم او ددښمنانو دخپلو اودخلکو دنيکمر غي او آزادی او دوسله وال پوځ دپياوړتيا لپاره خپل هـــر ډول تياری څرګندوم، نن زموږ په ولايت کی نه يواځي نارينه بلکـــی ښځي هم په وسله واله توګه د انقلاب دفاع کوی، موږژمنه کوو چې ستاسو محترم ببرك كارمل د افغانستان د خلکـــو در ښتيني او غمخور مشـــرپه مشری خپل هيواد پرمختللی او سمسوروو.

وروسته دخوست د لويـــی ولسوالي دخلکومنتخب‌استازی وکيل عليجان دوينا په ترځ‌کی وويل‌.زموږ خلکو وليدل چې څرګنده د افغانستان د خلك دموکراتيك ګوند او د افغانستان ددموکراتيك جمهور ی دولت دپولو په‌ساتلو کی‌اود پښتنو قبايلو رول ته‌په‌درنه سترګه کتلي‌اوګوری اودهغوی عنعنو، دودونو او رواجونو ته دژور درناوی په درلودلو سره دباور، سولي او همکا ری سياست تعقيبوی.

موږ ګورو چې د افغانستان دخلك دموکراتيك ګوند ا و زموږ انقلابي دولت څه ډول زموږ د پلرونو او نيکو نوغوره دودونو ته د درناو ی په خاطر پخپل انساني سياســت او مترقي کړنلاری سره ټو لـو هغو کسانو سره چې غوليدلی اوياپه بهرکی په کمپونو ا و خيمو کی اوسيږی اويا پـــه نورو هيوادو نو کی ژوند‌کوی اوان له هغو کسانو سره چې ددښمنانو له خوا مورچلونوته راکښل شويدی، ښه چلنـد کوی زموږ دخلکو ګــران ا و محترم مشر ببرك كارمل هغو کسانو ته چې ددښمنانو پــه لومه کی نښتي ان هغوکسانو ته چې زموږ دانقلاب اودو لت پرضد يي وسله اخيستی د بخښني فرمان صادر کړيـدی اوهغه فرمان اوس هم‌نافذ دی.

وکيل عليجان وويل: په پای‌کی دخوست د لـــو يـــی ولسوالی دزيارکښو اوميړنيو خلکوپه نمايندګی اعلاموم موږ ددغی ستری جرګی ارمانونه په ټول قدرت سره په عمـــل کی پلی‌کوو اوپه تيره بيـا د پولو په ساتنه او د انقلاب، خپلواکۍ، سولي او څمکنـــی بشپړتيا په خاطر خپل ټـــو ل ځواك په کار اچوو.

دلويی جرګی دننني غونډی کارله غرمی وروسته د پنځـه نيمو بجو په شاوخوا کی پای ته ورسيد.

باختر

## دبنديانو دبخښنې دپريکړې اعلام

دافغا نستان د خلك دموکراتيك ګوند د مرکزی کميتي عمومی منشي اود افغا نستان ددموکرا تيك جمهو ريـــت د انقلابی شورارئيس ملګری‌ببرك کار مل د افغا نستان ددموکراتيك جمهو ريت د لويـــی جرګی په پرا نيستو نکی غونډه‌کی د لويی جرګی برخهوالو ته اعلام وکړ چـــی د افغا نستان د خلك دمو کراتيك ګوند د سياست ‌په‌پيروی اود افغانستان د دمو کراتيك جمهوری دولت د کړنلا ری له مخی چی وخت په وخت دبنديانو دجزاګانو د بخښلوفرمانونه صادريږی بياهم‌ستاسی‌د افغانستان د خلکو د استازيو اود افغانستان د دمو کراتيك جمهو ريت د لويی جرګی په ويا ړ کمسيون مو ظف کيږی چی‌هغه‌شمير نارينه او ښځينه بنديانو چی دروند جنايت يی نه‌وی کړی‌دخلاصي کيدو پيشنهادونه چی د خپل بند يوه‌برخه يی تيره کړی وی د افغا نستان ددمو کراتيك جمهوريـــت د انقلابی شورا رئيسه هيا ت ته وړاندی کړی.

دافغا نستان د خلـــکو د ګران مشر ببرك کار مل ددغه اعلام څخه د خلکو استاز يو اود لويی جرګی برخه وا لـو به‌پرله پسی چکچکو سره په داسی حال کی چی تالار لـه ولولو ډك و هر کلی وکړ او زموږ د ګوند او انقلا بي‌دولت انسان دوستانه سيا ست يی يو ځل بيا تاييد او د هغـه ملاتړ يی وکړ.

باختر

په لويه جرګه کی چی ممدا اوس زموږ پ دانقلا بی هيواد کی روانه ده زموږ د ټو لنی‌د ټولو مليتو نو، قو مونو،قبايلو ،طبقو او قشرو نو پرځای استازی ګډون لری او دوی یې ټاکلی دی. ...

په لويه جرګه کی‌چي ممدا اوس زموږ د انقلابي هيواد کی روانه ده زموږ د ټولنی د ټولو مليتو نو، قو مونو،قبايلو ،طبقو او قشرو نو پرځای استازی پکی دی.

په لو يه جرګه کی د هيوادد خلکو دمنتخبو ۱۷۹۶ استازو څخه په سلو کي ۱۱ر۶ کـارګران ،په سلو کی ۳۶بزګران پەسلو کی ۲۲ روښان فکران، پەسلو کی يوولس عالمان او روحا نيو ن په سلو کی‌۲۵ر۴ دقومونو او قبايلو مشرا ناو ټولنيز شخصيتو نه دی.

## دمبارکی پيغامونه

په افغا نستان کی دلو يی جرګی دجوړيدو له امله کابل ته دوزير ستان ايجنسی او بلوچستان دبيلا بيلو قومونو له خوا دمبارکی پيغامونه رارسيدلی دی.

په هغه پيغام کی چـــی د وزيرستان ايجنسی دبيلابيلو قومونو له خوادافغا نستان د لويي جرګي پ ه‌نامه رارسيدلي ليکل شويدی مو ږ دوزيرستان ايجنسي بيلا بيل قومونه چې داحمدزی وزير،اتمانزی وزير، مسود، اوبيټنيوورو نه قومو نه پکی دی‌دافغانستان دخلکو دګران مشـــر ببرك کارمل په نوښت پــه افغا نستان کي دلويی جرګـــی له جوړيدو سره خپل غـــوښ ملاتړ څرګندوو اود هغی هـــر کلی کوو او ددغی جرګـــی‌د جوړيدو له امله محترم ببركکارمل اود افغا نستان ټولـــو ورونو خلکو ته مبارکی‌وايو.

دغه‌راز په پيغام کی ليکل شوی چې موږدجرګی له‌برخهوالو څخه غواړو چې دوړوروژنی اودمسلمان له خـوا د مسلمان دوژنی په باب ګـتور تصميمونه ونيسی ځکه‌دپښتنو مشرانو تل جنګ جګړەدجرګو له لاری حل او فصل کړی‌ده.

موږ دوزير وسپين ږيری او مشران ددغی جرګی له‌جوړيدو سره چې داسلام دمقدس دين داساساتو او دافغانانو لـــه غوره دود سره سمه ده خپـــل غوښ ملاتړ څرګند وو او يـو ځل بياد هغی له امله محتـــرم ببرك کارمل او دافغا نستان ټولو خلکو ته مبارکی وايو.

همدغه راز په هغه پيغـام کی‌چی دبلوچستان دلويانو او سپين ږيرو له خوا کابل تـــه رارسيدلی ويل‌شوی دی چـــی موږدبلو چستان د ايالت دمری او مينګلو بلـــــو څـــو خوانانو او لويانو کله چی د لويی جرګی دجوړيدو په باب دافغا نستان دانقلابی شورا د رئيس محترم ببرك کارمـــل راديويی پيغام واوريد ډيـــر خوشحاله شوو ځکه چـــی‌د افغا نستان لويانو او سپينږيرو ته درناو ی او هغـو ی ته دهيواد دجوړيدو په لاره‌کي دواك ورکول ډير ارزښتنا ك دی.

موږ دبلوچستان دايالت‌ټول بلوڅان دلويی جرګی جوړيدل يو ستر عمل اوداسلام‌د سپيڅلی دين له اساسا تو اود افغا نا نوله غوره دوداوعنعنی سره سم بولو.

په‌پای کی دبلوچستان‌دمری او مينګلو بلوڅانو محتـــرم ببرك کارمل‌ ته اودهغو لـــه لاری په لويه جرګه کی ټولـو برخه والو سپين ږيرو،لويانو اواستازيو ته خپلی دزړه لـــه کومی مبارکی څرګندی‌کړيدی.

په هغه پيغام کی چـــی‌د پښتنو دبيلا بيلو قومونو لــه خوا دافغا نستان دلويی جرګی په نامه رارسيدلی دی ويـــل شويدی.

موږ دکاکړو ،ناصـــرو،

(۷مخ)







# انقلاب په انځورونو کي

ورمه ورخ د ثور انقلا ب حقیقت د ورځپا ڼې دعکاسي نندارتون د ثور د پر تمین انقلاب د اوومې کا لیزې په ویاړ چې د ثور انقلاب دلوړو ارمانونو د تر سره کو لو او زموږ په سپیڅلې خاوره کې د نوی او غو ړید لې ټو لنې د جوړولو لەپاره دافغانستان د زیار کښو خلکو د اتلوال کار او مبارزې ښکا رندوی دی، په کابل کې د شوروی اتحاد د علم او فر هنګ په خو نه کې پرا نیستل شو.

ددغه نندار تون چې ۱٦۰ بیلا بیل عکسو نه لري اویوه اوونی د مینه والو پر مخ پرانیستی‌دی، پەدی ګنه‌کی‌هو یی ځینی عکسو نه غوره‌کړی دی.

لومړی عکس: د ثور انقلاب د شپږمې کا لیزې د جشن په ورځ د کابل ښار د زیار کښا نو د مار ش یوه برخه.

دویم عکس: رخشانه دهلمند ولایت مر کز په قلعه کهنه‌کی د انقلاب ده لدا فعینو د ډلې غړې.

دریم عکس: لعل‌محد مد د هیواد د وسله والو ځوا کونو یو تن سر تیری په داسې حال کې چې دخلکو دسوکالی د برابرولو په لاره کې دده د جنګیا لیو خد متونو ددرناوی په نوم، د قره باغ دولسوالی د اوسیدونکو زامن د انګورو ګنګینه ده ته وړاندی کوی.

څلورم عکس: د هیواد یوتن زیارکښ دا.خ.د.ګ دمرکزی کمیتې په یوو لسم پلینوم‌کې د ملګری ببرک کارمل د وینا د لو ستلو په حال کې چې د اقتصادی مسلو د حل او زموږ د ټو لنې د زیار کښو خلکو د سطحې د لوړولو په باب پراخه تد بیرونه لري.

(دشیر شاه ابوی او هاشم نذیر عکا سي)





# کابل ته ددوستو هیواد و هیأتونه راورسیدل

له بهرنیو هیوادو سره د شوروی اتحاد د دوستی اوفرهنګی اړیکو دټ ولنو داتحادیې مرستیال سر ګی سوف د افغا نستان د دمو کراتیک جمهو ریت دسولی، پیوستون او دوستی دساز مان په بلنه د ثور انقلاب د اوومې کالیزې د نمانځلو په مراسمو کې دګډون له پاره ورمه ورخ کابل ته راو ر سید.

دکابل په نړیوال هوا یی ډګر کی د افغانستان د دموکراتیک جمهو ریت دسولی، پیوستون او دوستی د ښاز مان مرستیال ملګری سیدامیر ذره دهیات هر کلی وکړ.

* * *

دشوروی اتحاد د لینینی کمسمول د مرکزی کمیټې هیات دافغانستان د ځوانانو ددمو کراتیک ساز مان په بلنه د ثور د پرتمین انقلاب د اوومې کالیزې په مراسمو کې د برخی اخیستنی لپا ره پرون کابل ته را غی او د افغا نستان د ځوانانو ددموکراتیک ساز مان د مشرتابه دهیات د یو شمیر غړیو لخوا یې هر کلی وشو.

* * *

ددمو کراتو ځوانانو د نړیوال فدرا سیون د اجرا ئیوی بیرو غړی سلطان سلیمان د لبنان، د آلمان د فدرالی جمهوریت، یونان، فرانسی او هند د هیوادو د استازو په شمول د هغه ساز مان د یوه هیات په مشری دافغانستان د ځوانانو د دمو کراتیک سازمان په بلنه دثورانقلاب داوومې کالیزې د هر کلی په مراسمو کې د ګډون لپاره ورمه‌ورخ کابل‌ته راورسید او د ځوانانو د دمو کراتیک‌سازمان دمرکزی کمیټې د ځینو غړو لخوایې هر کلی وشو.

* * *

دکار ګری اتحادیو دنړی وال فدراسیون منشی دافغانستان ددمو کرا تیک جمهوریت د صنفی اتحادیو دمرکزی شورا په بلنه د ثور انقلاب د اوومې کالیزې د نمانځلو په مراسمو کې ګډون لپاره پرون‌کابل ته راورسید.

همدا راز د شوروی اتحاد دمسلکی اتحادیو د مر کزی شورا هیات اودچکو سلواکیا دانقلابی کار ګری اتحادیو دمرکزی شورا هیات د افغانستان ددمو کرا تیک جمهوریت د صنفی اتحادیو دمرکزی شورا په بلنه د ثور انقلاب د اوومې کالیزې په جشن کې دګډون لپاره کابل ته راورسیدل.

دکابل په نړیوال هوایی ډګر کې‌د مرکزی اتحادیو د مرکزی شورا منشی او ددغې اتحادیې د نړیوالو اړیکو مسوول د هیاتو نو هر کلی وکړ.

* * *

د فرا نسی - افغا نستان اود بلژیک، افغا نستان د دوستی د ټولنو هیاتونه د افغا نستان ددمو کرا تیک جمهوریت دسولی پیوستون او دوستی‌دساز مان په بلنه د ثور انقلاب د اوومې کالیزې د نمانځلو په مراسمو کې‌دګډون لەپاره ورمه‌ورځ کا بل ته راورسیدل.

* * *

د شوروی اتحاد د هنرمندانو یو هیئت د ثور د پرتمین انقلاب د اوومې کالیزې د نمانځنی په مراسمو کی دیو لړ هنری نندارو او کنسرټونو داجراکولو لپاره‌ورمه‌ورځ کابل ته راغی اود کلتور د دولتی کمیټې د استازو لخوا یې هر کلی وشو.

با ختر

## د مبارکی پیغا مونه

(د٦ مخ‌پاتی)

اڅکزو، نورزو، بارکزو، علی‌زو او‌ټولو پښتنو قو مونو، ټول سپین ږیری لویان او ځوانان په افغا نستان کې دلویې‌جرګې دجوړیدو په باب دمحترم ببرک کارمل درادیو یې پیغام په اوریدلو سره ډیر زیات خوښ شو و ځکه ددغې لویې جرګې جوړیدو ټولې نړۍ ته څرګنده کړه چې دافغا نستان دولت سپین ږیرو او لو یانو ته ژور درناوی لري او دټوی ټولنې دجوړولو په خاطرهغوی ته دتصمیم نیولو واک ورکول کیږي.

موږ پوره‌تنی ټوک قو مونه په افغا نستان کې دلویې‌جرګې جوړیدل داسلام له سپیڅلی دین سره سم اود پښتنو له غوره‌دودونو او رواجو نوسره سم اقدام ګڼو اود هغې هر کلی کوو.

ځکه په واقعیت کې به په انقلابی افغا نستان کې‌دلویې جرګې جوړیدل سوله اوآرامی منځته را وړی اونور به په افغا نستان کې ورور وژنه پای ته ورسیږي.

پەپای کې خپلې ښې‌هیلې او دزړه له کومې مبارکی محترم ببرك کارمل او دلو یې جرګې ټولو برخه والو ته څرګندوو.

باختر

## په‌بلخ کې‌د کار د سیالیو پیل

د ثورد‌پر تمین انقلا ب داوو مې کالیز ی په و یاړ ددو لت د پلا نونو دلا زیات تر سره کو لو تر شعارلاندی د کار سیا لی و ړمه ور ځ دبلخ و لا یت په شپا ړس تو لیدی او ساختمانی مو سسو کې پیل شوی.

پد غه منا سبت د بلخ ولا یت په بیلا بیلو مو سسو کې د ګوندی فعالینو، دصنفی اتحادیو دمسوو لینو، د مو سسو او دایرو درئیسانو ګډې غونډې جو ړې شوی وی.

با ختر

## دنوی ښوونځی پرا نیستنه

د ثور دپر تمین انقلا ب د اوو مې کالیـزی له امله د نیکبختی څلیرویشت ټولګیز ښوو نځی چې د دو لت لـه بودجې‌څخه دیودیرش ملیونو اووه سوه پنځه اتیا زروافغانیو په لګښت په پنځه جریبه ځمکه کې د کابل ښار والی‌د دریمې ناحیې مربوط څلور مې کار تې کې جوړ شـوی دی پرون د ښوونې او روز نـې وزارت دمعین لەخوا پرانستل شو.

دغه ښوونځی چې د ۱۳٦۰ کال د حمل په میاشت کې یې دبنسټ ډبره ایښو دل شوی وه له پلان څخه شپږ میاشتی مخکې بشپړ او ګټه اخیستنی ته چمتو شو.

دغه‌ښوونځی چې‌دبریښنا، اوبو رسولو او کانا لیزاسیون په سیستم سمبال دی شل دلوست‌خونی، څلور لا برا - توار ونه د ښوو نکو خو نې شپږ اداری خونی کتابتون او نور ملحقات لري.

باختر

## د لیك لو ست دزده کړې بر - یګا د جوړ شو

دثور دپر تمین انقلا ب د اوومې کالیزې د هرکلی لـه امله اود دافغا نستان ددمو - کراتیك جمهو ریت د لویې جرګې په ویاړ دکابل ښار د څلورمې ناحیې‌دګوندی‌کمیټې له کادر و نو او فعا لینو څخه‌د لیك لوست دزده کړی سل کسیز ګوزاریز بریګاد جو ړ شو.

په هغه غونډه کی چی لـه همدی امله شوی وه‌دکابـل ښار د ځوانانو د دمو کراتیك ساز مان د څلورمې ناحیې د ګوندی کمیټې منشی د ځوانانو د دمو کراتیك ساز ما ن دکابل ښار د کمیټې مرستیال او دڅلور مې‌ګوندی ناحیې‌یوه تن غړی د بریګادانو دِ دندو په ارتباط خبری وکړی.

باختر

## ګټــــور نو ښتو نـه

د ثور د پرتمین انقلاب د اوومې کالیزې له امله دافغانستان د ښځو د دمو کراتیك ساز مان دکابل ښار د دو - همې ناحیې د ناحیوی شوراله خوادکار ځای اود ا ستو - ګنې ځای دوه ساز مانونه دښځو دخبرو اترو دری‌خونی اود لیك لوست د زده کړ ی شپږ کورسونه چې په هغوکی ټول شپیته تنه شامل شو ی جوړ شوی دی.

دغه راز د ښوونې اوروزنې اود صکوکو په مطبعو کـی ددغې شورا له خوا د ګوزاریز کار بریګا دان جوړ شوی دی چی په هـغـو کـی ټـول یو او یا تنه شامل شویدی.

د دغو بریګادانو غړ یوژمنه کړی چی د ثور له دو همی بیتې څخه تراوومی نیتې‌پوری دانقلاب د لاری د شهیدانو په ګټه د ورځی یو ساعت‌دخپلی خوښی کار وکړی.

با ختر

# بهرني خبرونه، واقعیتونه، پېښې

## دش.ا.ک.ګ د مرکزي کمیټې پلینوم جوړ شو

د شوروي اتحاد د کمونیست ګوند د مرکزي کمیټې پلینوم پرون په مسکو کې جوړ شو.

دتاس د خبري آژانس د رپوټ له مخې د شوروي اتحاد د کمونیست ګوند د اووه ویشتمې منظمې کنګرې د جوړېدو اود دغې کنګرې د تیارۍ په اړوند و ظیفې تر نامه لاندې رپوټ د شوروي اتحاد د کمونیست ګوند د مرکزي کمیټې د عمومي منشي ملګري میخائیل ګرباچف له خوا پلینوم ته وړاندې شو.

## د و.ای.لنین د زیږیدو د کالیزې نمانځل

دولادیمیر ایلیچ لنین د زیږیدو د یو سلو پنځلسمې کالیزې د نمانځنې له امله د کریملین په ماڼۍ کې یوه غونډه پرانستل شوه.

په دغه غونډه کې د شوروي اتحاد د کمونیست ګوند د مرکزي کمیټې عمومي منشي ملګري ګرباچف او دغه هیواد نورو مشرانو برخه اخیستې وه.

دتاس د رپوټ له مخې په دې غونډه کې د شوروي اتحاد د کمونیست ګوند د مرکزي کمیټې دسیاسي بیرو غړي او دغه هیواد د وزیرانو شورا لومړي مرستیال ملګري حیدر علي یف یو رپوټ وړاندې کړ.

باختر

## فاشیستي ضد مظاهره

د آلمان په اتحادي جمهوریت کې هانوور ته نژدې د برګنې بیلسین په نامه د نازي د پخوانیو اردوګاوو د خپلواکۍ کېدو یښتمه کالیزه د فاشیستي ضد ستري مظاهرې په ترڅ کې ولمانځله شوه.

مظاهره کوونکو د اتحادي آلمان په جمهوریت کې دامریکایي پرشنګ توغندیو سملاسي بندول اود هغو پر شنګ توغندیو له منځه وړل غوښتي دي چې پخوا ځای پر ځای شوي دي.

همدا راز هغوی د لویدیځ آلمان له حکومت څخه وغوښتل چې نیو نازي سازمانونه بند کړي اود اتحادي آلمان په جمهوریت کې د نازیزم او نیونازیزم د هر ډول څرګندېدو په خلاف اقدام وکړي. باختر

## اعتراضیه مظاهرې

په زرګونو تنو استرالیایانو چې داتومي وسلو ضد غورځنګ غړي دي دیکشنبې په ورځ داسترالیا د لویدیځ په ستر بندر کې په اتومي وسلو دسمبا لو اتو امریکایي بیړیو د لنګر اچولو پر خلاف په اعتراض کې د بریمنتل په ښار کې پراخه مظاهره وکړه.

کله چې داسترالیا پولیس دمظاهرې دخوړولو لپاره صحنې ته حاضر شول دمظاهره کوونکو یوه ډله په یوه بیړۍ کې کښیناسته او د اتومي وسلو ضد غورځنګ بیرغونه او پوسترونه یې پر هغې باندې وړپول.

پولیسو دېرش تنه مظاهره کوونکي بندیان کړل.

باختر

دا یتو پیا د قحطۍ و هلو سیمو له خلکو سره د چکوسلوا کیا او پولینډ د کارګرانو مرستې د سوسیالیستي هیوادونو د کارګري انترناسیونالیستي خصلت څرګندوی دي.

په عکس کې دایتو پیا زیار کښانو ته د نوموړو کارګرانو د مرستې دما لو نو الوتکه د بارولو په حال کې اوادیس ابابا ته د تللو په درشل کې. د ١٩٨٥ جنوري

## د شوروي اتحاد او چین ترمنځ سیاسي مشورې

د شوروي اتحاد د کمونست ګوند د مرکزي کمیټې د سیاسي بیرو غړي او د هغه هیواد د وزیرانو شورا د رئیس لومړي مرستیال اود بهرنیو چارو وزیر اندری ګرومیکو د چین د حکومت د بهرنیو چارو د وزیر مرستیال او خاص استازي کیان کیچن د شوروي اتحاد او چین ترمنځ د سیاسي مشورو له پاره وما نه.

دواړو خواوو د کتنې په ترڅ کې په اوسني حالت کې د شوروي اتحاد او چین د ولسي جمهوریت ترمنځ د اړیکو د پراختیا په لړلیدونو پورې د اړوند مسئلو په باب خبرې وکړې.

اندری ګرومیکو د شوروي اتحاد د کمونیست ګوند د مرکزي کمیټې د عمومي منشي ملګري میخائیل ګرباچف د هغې وینا پر ارزښت چې د شوروي اتحاد د کمونیست ګوند د مرکزي کمیټې د مارچ د میاشتې په پلینوم کې یې کړې ده. د چین د صدراعظم له مرستیال لي پنګ سره د خبرو په بهیر کې د هغه په څرګندونو ټینګار کړی دی.

باختر

## زموږ تبصره

## د نامیبیا د خلکو له غوښتنې سره پیوستون

دنامیبیا د حالاتو په باب د ناپیلتوب غورځنګ د سمون د بیرو فوق العاده غونډه چې په هغې کې د نړۍ څه د پاسه د ٨٠ هیوادو د بهرنیو چارو وزیرانو او استازو او له هغو څخه د افغانستان دډموکراتیک جمهوریت د بهرنیو چارو وزیر ګډون کړی و د اپریل په ٢١ نیټه په نوي ډیلي کې پای ته ورسیده.

په دې غونډه کې په نامیبیا کې پر هغو سخت خړو پړو حالاتو باندې چې د جنوبي افریقا د نژاد پال رژیم دجنایتکار او وحشیانه سیاستونو له امله را منځته شوي خبرې وشوې. په نامیبیا کې د جنوبي افریقا توپیر غوښتونکي رژیم یعنې زموږ د وخت د مستعمرویو وروستي پاتې شوني، یو نیم ملیون نامیبیا یان په خپلو منګولو کې نیولي او د هغه هیواد طبیعي زیرمې الکه الماس، یورانیم، مس او سرب لوټوي، په نامیبیا کې د جنوبي افریقا د رژیم یو بل جنایتکار عمل د انګولا د لومړي جبهې دهیواد و او د افریقا د نورو هیوادو پرخلاف دتوپ او تیرۍ د تختې په توګه د هغه هیواد کارول دي.

د ډیلي په فوق العاده غونډه کې دافریقا د جنوب لویدیځ خلکو دسازمان (سواپو مشر د خپلواکۍ او آزادۍ دګټلو له پاره د نامیبیا د خلکو میړنۍ او اتلوالې مبارزې یادې کړې اود نامیبیا د خلکو پر خلاف دجنوبي افریقا د رژیم له خوا جنایتونو څخه یې پرده پورته کړه. ده ددیګن اداره چې د جنوبي افریقا نژاد پال جمهوریت ته یې خپلې هر اړخیزې اقتصادي، سیاسي او پوځي مرستې زیاتې کړې سخته وغندله او څرګنده یې کړه چې د پریتو ریا له رژیم څخه د متحده ایالاتو اود هغه دلاندې یوالانو له ننګې پرته به دنژاد پالونکو وس ونه رسیږي چې په نامیبیا اود جنوبي افریقا په جمهوریت کې د نیولو په دوام اود خپل سیاست په تېلو لاس بری شي.

په دې غونډه کې دا. د. ج د بهرنیو چارو وزیر ملګري شاه محمد دوست دنامیبیا له آزادۍ څخه دافغانستان بشپړه ملاتړ څرګند کړ.

ویې ویل: موږ باور لرو چې دنامیبیا مبارز خلک به وروستنه او یا ژر خپلې پخوانۍ هیلې ته ورسیږي او خپله خپلواکي به وګټي.

همدا رنګه د هند صدراعظم اود ناپیلتوب دغورځنګ مشر راجیو ګاندي چې د کنفرانس په کار کې یې ګډون درلود، سوا یو اود نامیبیا خلکو ته یې د هند د مادي او معنوي مرستو زیاتوالی اعلام کړ اود سواپو استازي ته یې دنامیبیا د ډیپلوماتونو په توګه په رسمیت وپېژندل. د ناپیلتوب غورځنګ دسمون بیرو فوق العاده غونډې دنامیبیا خلکو ته د ټاکلې مرستې پروګرام چې په سختو شرایطو کې خپلو روا مبارزو ته دوام ورکوي تصویب کړ. په دغه بین المللي ستره غونډه کې له ټولو برخه والو هیوادو څخه وغوښتل شول چې د جنوبي افریقا له نژاد پال جمهوریت سره خپلې ټولې سیاسي او اقتصادي اړیکې بندې کړي او همدا رنګه د ملګرو ملتو له سازمان څخه یې وغوښتل چې د پریتوریا پرخلاف جزایي اغیزمن تدبیرونه ونیسي.

او د ملګرو ملتو دسازمان نږدې یکړې په عملي کولو سره نامیبیا ته د خپلواکۍ په ورکولو دغه هیواد مجبور کړي.

سوا یو د خبرو او سوله ییزې لارې د نامیبیا د نړیوالو ټولو دمنلي د حل پلوي دی خو هغه څه چې د دغې مسئلې عملي څنډ کیږي دنژاد پال رژیم دګوډاګي رژیم همغه شته والی دی چې دامریکا دمتحده ایالاتو دامپریالیزم او د هغه د انډیوالانو له خوا یې ملاتړ کیږي د نامیبیا خلک باید دخپلې ارادې دحق اود خپل برخلیک دټاکلو څښتنان شي اود نامیبیا د حکومت دچارو مشري په لاس کې واخلي.

همدا راز ناپیلتوب دغورځنګ دانسجام د بیرو په فوق العاده غونډه کې د نیکاراګوا دخلکو له مبارزې او د فلسطین دخلکو له روا مبارزو څخه ملاتړ شویدی او دغونډې ګډون کوونکو د لبنان پرضد د جنایت کوونکو عملونو په خاطر اسرائیل سخت محکوم کړل. د ډیلي د غونډې ګډون کوونکو د شوروي اتحاد دسولې له جوړوونکو نوښتونو او وړاندیزونو څخه د ملاتړ په ترڅ کې، د وسله والې سیالۍ سیاست چې د امریکا د متحده ایالاتو له خوا ورته لمن وهل کیږي اود نړۍ ټول هیوادونه یې د سخت ګواښ لاندې نیولي دي سخت محکوم کړ.

رومان

## دباندونګ کنفرانس د دیرشمې کالیزې په مناسبت.

# باندونګ د ناپیلتوب د غورځنګ پیل

دري لسیزې مخکې د آسیا اوافریقا د ٢٩ هیوادو کنفرانس د اپریل له ١٨ څخه تر ٢٤ پورې د اندونیزیا د باندونګ په ښار کې جوړ شو. نن ورځ چې دري لسیزې له هغې نیټې څخه تیرېږي د نړۍ ټولو مترقي هیوادو او نه له هغې جملې څخه انقلابي افغانستان د بین المللي دیو پیاوړي ځواک د پیداکیدو د مبداء په خیر یعنې د ښکیلاک او نیم ښکیلاک له ښکیل کیدو څخه د هیوادو خلکو د ژغورنې غورځنګ د دغه کنفرانس نمانځنه کوي.

دباندونګ په کنفرانس کې دناپیلتوب دغورځنګ بنسټ کیښودل شو. دباندونګ کنفرانس د آسیا او افریقا نوي خپلواکي ته رسیدلو هیوادونو د سترو شخصیتونو په ګډون جوړ شو.

دباندونګ په کنفرانس کې له ډېر و بحثونو وروسته د هیوادونو د وا کمنۍ حق ته درناوی، د ټولو ملتونو او نژادونو د برابر وحقوقو پېژندل، دهیوادونو په کورنیو چارو کې د هر ډول لاسوهنې غندل، د ملګرو ملتو د سازمان د منشور د اصولو له مخې د ملتونو دبرخلیک ټاکلو حق ته درناوی. دکړکیچونو په حل کې له ګواښ او زور څخه کار نه اخیستل، په سوله ییز ډول د ستونزو حل او فصل په هکله تصمیمونه دتایید وړ وګرځید ل. سره له

هغې چې دوړاندې شوو اصولو څنې برخې په بشپړه توګه رو ښا نه نه وې. خو نیول شو و تصمیمو نو دښکیلاک او امپریالیزم پر ضد دمبارزو د بین المللي سو لې د بشپړیدو د بهیر په ټینګښت کې ستر رول ولوباوه.

که څه هم دګډو نکو و نکو ترمنځ سخت اختلافو نه منځته راغلل او امپریالیزم او دهغه انډیوالانو چې په کنفرانس کې یې درز اچولی و دغو اختلافو نو ته لمن وهله خو کنفرانس په کلي توګه د بې و سلې کیدو، دهستوي آزمایښتونو د مخنیوي او د پوځي اډو د ټولو لوملاتړ کاوه او د امپریالیزم د پوځي تړونو سیاست یې وغانده. په باندونګ کې د امریکا د لوټوونکي امپریالیزم څینو سرښندونکو د کنفرانس د امپریالیستي او ښکیلا کې ضد تګلوري د بې لارې کو لو لپاره په اصطلاح د ((شوروي خطر)) طرحه کړ او هدف داو ه چې د نړیوال امپریالیزم او له ټولو مخکې د امریکا امپریالیزم رښتیني ماهیت پټ کړي.

خو د امپریالیزم ټولې هڅې کوم ځای ته ونه رسیدې او د باندونګ کنفرانس د نژادي توپیر، امپریالیزم، صهیونیزم، اپارتاید، ښکیلاک او نوي ښکیلاک پرخلاف د سوله ییز ګډژوند د مبارزې اصو ل تایید کړل په آسیا، افریقا او لاتیني

د١٩٤١ کال په دسامبر کې د ٢٥ هیوادو مشرانو په بلګراد کې دناپیلتوب دغورځنګ په لومړني کنفرانس کې ګډون درلود که څه هم امپریالیزم هلې ځلې وکړې چې د بل ځل لپاره دغه امپریالیستي ضد غورځنګ دهغه له اصلي تګلورې څخه بې لارې کړي خو د هغه پلانونه داوبو دسر ځګ شوه.

په ١٩٦٤ کال کې په قاهره کې د ٤٧ هیواد و اوحکومتونو مشرانو ګډون وکړ. په (١٩٧٠) کال کې په لوساکا کې دناپیلو هیوادو په کنفرانس کې ٥٣ هیوادونو، په ١٩٧٣ کال کې په الجزایر کې ٧٥ هیوادو، په (١٩٧٦) کال کې په کولمبو کې ٨٤ هیوادو، په (١٩٧٩) کال کې په هاوانا کې ٩٠ هیواد وګډون درلود. په ١٩٨٣ کال کې په ډیلي کې د ناپیلتوب دغورځنګ اوو م کنفرانس د١٠١ هیوادو په ګډون په داسې وخت کې جوړ شو چې دامریکا دمتحده ایالاتو امپریالیزم دسولې، د یتانت، اود هستوي بې وسلې کو لو په وړاندې ولاړ او دهستوي نا تار سخت خطر ته لمن وهي او د وا شنګټن د پراختیا غوښتونکي اوتیري کوونکي سیاست له امله نړۍ په کړکیچن حالت کې ده. او ددریمې نړۍ هیوادو اقتصادي حالت یې کمزوری کړی دی.

امریکا کې دامریکا متحده ایالاتو پوځي او سیاسي بیشرمانه لاسوهنو پراخه لوړې پیدا کړې د ناپیلتوب په اووم کنفرانس کې دپراختیا یې هیوادو په نړیوالو عمده مسالو یعنې اقتصادي اوسیاسي ستونزو باندې خبرې وشوې او په دې برخه کې ګټورې او جوړوونکې پریکړې وشوې.

ملګري ببرک کارمل د ا.د.ج دبهرني سیاست اصلي اساسي اصول د ماهیت د څرګندولو لپاره داسې رنګه ویلي دي: ((د ا.د.ج حکومت د نړۍ له ټولو هیوادو سره د اړیکو په برخه کې دخپل کور نۍ انقلابي غوښتونکي سیاست په بشپړه هماهنګۍ سره اصولي سوله ییزه لاره تعقیبوي.

افغانستان یو ناپیلی هیواد دی اونا پیلي به پاتې شي. موږ په خپل ټول ځواک سره د سوله ییز ګډ ژوند دناپیلتوب او فعالو اصولو، دکړکیچ له منځه وړلو او عمومي بې وسلې کولو سیاست څخه ملاتړ کوو. او د ټولو سوله خوښوونکو ځواکونو سره یوځای د جګړې غوښتونکو ځواکونو، زوړ او نوي ښکیلاک امپریالیزم او صهیونیزم، فاشیزم اونژادپالونکو او اپارتاید پرخلاف په یوه پراخه جبهه کې مبارزه کوو.))

دیوه

## د جاسوسانو نیول

د پاکستان د جاسوسي د سازمان دوه تنه جاسوسان دهند د پنجاب ایالت دګرداسپور په سیمه کې د هغه هیواد د پولیسو له خوا نیول شویدي.

دهند د پي. ټي. ای آژانس د رپوټ له مخې دغو دوو پاکستاني جاسوسانو اعتراف کړیدی چې په تیره بیا دهند د اردو په باب یې د جاسوسي اطلاعات راټول کړي او هغه یې پاکستان ته لیږلي دي. باختر

## د ناټو په دفتر کې چاودنه

په بروسل کې د ناټو تړون د پارلمان دفتر ورمه ورځ سهار دیوه قوي بم د چاودنې له امله سخت زیانمن شو.

دبلژیک دراډیو د رپوټ له مخې یوه افراطي سازمان چې ځان یې د کارګري عملونو له پاره انقلابي جبهه بللی ده ددغه چاودنې مسوولیت په غاړه اخیستی دی.

## دریګن د کارځای کلابندي

هغو مظاهره کوونکو چې، دولتي ضد شعار ونه ورسره وو ورمه ورځ له هغه مخکې چې پولیس د هغوی پر لیکو یرغل وکړي اود هغوی دوه سوه پنځه ویشت تنه د سپینې ماڼۍ له شاوخوا څخه جیل ته واستوي نږدې دوه ساعته د ریګن دکار ځای ته د ننوتلو دروازه کلا بنده کړه د نړیوالو خبري آژانسونو د رپوټ له مخې داعتراض کوونکو ډلو یو ائتلاف چې د هغوی شمیر نږدې دوو زرو تنو ته رسیږي ورمه ورځ د لنکلن په یادګاري ځلي کې سره را غونډ شول او بیایې د سپینې ماڼۍ په لور مارش وکړ په هغه ځای کې څه د پاسه دوه سوه تنه مظاهره کوونکي پرځمکه کښېناستل او د

پنسلوانیا هغه دری واټونه چې سپینې ماڼۍ په لور غزیدلي کلابند کړل دغو ډلو دلاتینې امریکا په وړاندې د ریګن د حکومت دسیاست پر خلاف مظاهرې وکړې د ریګن اقتصادي سیاستونه یې وغندل او د جنوبي افریقا له نژاد پال رژیم سره یې د امریکا ملاتړ په غوڅه توګه وغانده.

باختر

د تحریر هیأت تر نظر لاندې
مسوول مدیر: صدیق کاوون
تیلفونونه
مسوول مدیر: ٢٢٤٧٤
سوچبورد: ٢١٠٤١ ٢١٠٤٢ ٢١٠٤٣
اداري: ٢١٩٤١ پستي صندوق: ٧٨٠
ویش او شکایتونه: ٢٢٨٥٩ بانکي حساب: ١٠١٨ پر ٩
دیوې ګڼې بیه ٢٠ افغانۍ
د دولتي مطبعې د ویب آفسیت چاپ